# ځیره را واستوئ خیر یوسئ

## وظیفه را کړی خدای مو وبنه




عصمت قانع

# ځیره راواستوی خیر یوسئ

## وظیفه راکړی خدای مو وبښه

لنډ داستانونه




عصمت قانع

## کتاب پېژندنه:

دکتاب نوم :ځيره راواستوئ خير يوسئ

ليکوال :عصمت قانع

کمپوزر :مصطفی «سحر» غازي کمپوزنگ سنتر، پېښور. پاکستان.

دچاپ ځای :حليمی پرنټنګ ايجنسی تليفون(۸٤۰۲۷۲)

دچاپ نېټه :حوت ۱۳۷۷ هـ ش

شمېر :۵۰۰ ټوکه

## اهدا

هغه چاته چې دخپل زړه په تول سېکه یې مینه را سره کړې ده «میرمنې ته مې».

عصمت قانع

## په دې مجموعه کې دغه کیسې لولئ:

ځېره راواستوئ خیر یوسی، ورکې لارې، ثواب او عذاب، د پلار په جامه کې، رنډی آباد، شنې روپۍ او سپینې پګړۍ، کله چې پوړونئ باد یوسی، سوې سترګې، د مرګ ماتی، تشه ځولۍ، د نفس قاتل او...

## مننه

د تاند ځلمیتوب د لومړنیو پسرلیو له انډیوال ګران مصطفې «سحر» څخه یو جهان مننه چې د دې مجموعې په کمپوز کې یې زیار وګاله.

همدارنګه له ګرانو ورونو توریالی مسعود او حلیمی صاحب څخه مننه چې د دې مجموعې په چاپ کې یې ونډه شته.

عصمت «قانع»

پېژندنه:

## دعصمت قانع دمنفرد ستایل لنډې کیسې

دقانع صاحب دا لنډې کیسې د پښتون وطن پښتو ژبې ادب تاریخ ، تهذیب او فرهنګ دنن ورځې د تراژیدي ډیر صاف تصویرونه دی.

دغو څو ژبو ، ګونګو جذبو ، نیمګړو ارمانونو او غمجنو حسرتونو کیسې دي دیوه داسې قام او ژبې کیسې دی چې دپو پناه کیدو له ګوابن سره لاس او ګریوان ده دیوه قام دپرون غونډې دنن دخوندی کولو کیسې دي.

په ماتو ګوتو لیکلې دقام د پرهارونو او د تاریخ دبې رحمه جبرونو کیسې دی چې دقانع غونډې بې همتا لیکوال دخپل تاریخ ځولۍ ته ور اچولې دي.

د قانع دورکی لارې لنډه کیسه د پښتون ادب په ننني ځولۍ کې داسې اضافه ده چې شاید تر اوسه بل چا داسې نایابه فن پاره نه وی تخلیق کړی.

قانع په دی افسانه کې لوستونکی تر لاس نیسی د خپل وطن دناپایه او ناتمامو هدیرو قبرونو ته یی دروي اوبیا دژوند دورکو لارو په لټون پسې د تیاکو پښو مزل ته ادامه ورکوی خپل ژوندی جسدونه یعنی دخپلې خاورې هغه خوځنده مړی وربښیی چې دژوند دمحبت خواخوږی یی له سر څخه کډه شوی ده. او زمان دخپلو خلکو پر خلاف جګړی ته مجبوره کړی دی

د قانع دوطن ګودرونه. د قانع دوطن دژوندانه خوځښتونه دقانع دوطن دپوړونو عفتونه څه ډول دمرګ او تراژیدی له ګوابښ سره لاس او ګریوان شوي دي دقانع دوطن ککری څنګه په ګولیو غلبیل شوي دي؟

خو همدې ټولې المیی ته هیچا هم دفبروری په پنځمه هڅ تال نه دي کړی، مونږ هم په دی عقیده یو.

زما یی څه چې کشــــمیر ســـوځی

دوطن کانی مې په وینو پاسته سوونه

زمونږ هدیرې اوږد ی سوی د عقیدو جنون د وینو سیلاوونه وبهول پر جوماتونو بمونه راوغورځیدل مقدسات توهین شول بیګناه لمونځ غاړي دجوماتونو په محرابونو کی ښخ شول.

داخلي جنګ دروسانو ترجنګ هم ډیری المیی تخلیق کړې

خواستعمارونکو قوتونو دهدیرو په پلن والی او اوږدوالی کې گټې

لیدلی او دهمدغو هدیرو په مینځ کې یې دقمارخانو، ساقی خانو او

زناخانو عمارتونه درول .

-زموږ په ټولنه کې خصوصاً دافغانی مهاجرینو په کمپونو کې

داعمل روان دي دا لویه استعماري حربه ده چې روانه ده څکه فاتح قومونه

دمغلوبو قومونو تاریخ ترتیبوي هسې خو تاریخ موږ هم لرو خو دامو

مجبوری ده چې پردې یې راته لیکی نوله همدې آمله له موږ لارې ورکې

دي تر اوسه پورې خو موږ ته چاد پښتنو متفق لیک دود هم رانه کړ څکه

خوموکله خلک بنی اسرآئیل کړی کله مو آریایان کړي اوکله خو بیا

دپټهانانو پرتوگ راواغوندي.

له کراچۍ څخه راجه بشارت دپښتنو تاریخ لیکی په رښتیا هم له

موږ لارې ورکې دي دورکو لارو لټون دمرگ ماتی غواړي ددغو لارو

موندل دتور پوستی لیډر او مبا په څېر دخلکو په مینه کې خوځیدونکی

زړه غواړي دادفطرت غوښتنه ده چې دهر جگړن ډرابن په وړاندې به

اومبا زیږی.

لنډه کیسه دلیکلو او لوستلو بیا بیا تکرایدونکی عمل دی خو په

نیشنلیستی بم کې داسې ښکاري چې دی لور ته ډېره کمه پاملرنه شوي

ده او هغه هم دکیسی په پای کې:

دنیشنلیستی بم کیسه دافغان وطن او افغان انسان دتراژیدي

دتاریخی انځور ډېره ښه هڅه ده دنیشنلیستی بم مواد کرکتر اوپس

منظر زيات خوندور دی او لوستونکی ديوه اوږده او وينجن فکر په تال
زنگوی د پکتي خان په اتلولۍ پسې يي ځوروی او هم يي د ندامت کندو ته
ور غورځوی او هم يي د پکتي خان د اولادونو په هکله داسې وينا ته
مجبوروی چې پدر ماسلطان بود.

د نيشنليستي بم په وروستۍ برخه کې د پکتي خان د اولادونو لپاره
زيات مهم وو چې ورته وښودل شي صوبايي خودمختاری له هغه چا
غواړی چې لس کاله يي ديره ور سره کړی وه.

په پښتني ټولنه کې د ملا او طالب هماغه مقام دی کوم چې ديوه
فقير او مسکين دی په سياسی توگه دا مقام د پښتنو روشنفکرانو
د منفي تمايلاتو په وجه د افراط وروستۍ پولې ته ورسيد.

ځيره راوړی خير يوسې دلنډې کيسې خصوصاً د پښتو دلنډې
کيسې د عروج يو ښه مثال گرزيدای شي.

په دې کيسه کې د لوستونکی ذهن په بيړه داقبلوی چې د کيسې
لفظ لفظ د خوند او رنگ شکورونه پاشي د کيسې ليکونکی د سياسی
پروپاگنډی ښکار نه ښکاري او نه خود مصنوعی رنگ اميزۍ سره
مخامخ دي ولی چې ليکونکی د خپل وطن، ژبې، ابرو او د خپلو
ستومانو خلکو هيلې ژوندۍ ساتي.

د پښتو په ادب کې دلنډو کيسو ژباړه ډېره ضروری ده او قانع په
کاميابۍ سره د ايرانی داستانونو يو غوره داستان په ډېره لوړه سليقه
ژباړلي دي چې هډو د ژباړې گمان نه پری کېږي.

دنفس قاتل هغه داستان دی چې دتصوف په نوم درياکارو مداريانو له لوغړنو څېرو څخه پرده پورته کوي.

په دې هکله علی سردار جعفرې په ترقی پسند ادب کې ليکی: تصوف په قرون وسطې کې دفيوډاليزم په ضد دبزگرانو دبغاوت نتيجه وه همداسې هر غورځنگ به په پای کې مذهبی بنه غوره کړه نو ځکه موږ په دې عقيده يو چې تصوف له هنر څخه ليونتيا زېږوی.

نقوش مجله په ۱۹٤٥ گڼه کې دعلامه اقبال دا قول راوړی دا سلام پر ځمکه تصوف بيخی يونا آشنا بوټی دي حالانکه لاهوری او پاکستانی ياران په دی عقيده دی چې دعلامه اقبال داشعر دتصوف نچوړ دي.

خردنے كه بهی ديا لا الله تو كياحاصـــــل
دل ونگاه مسلمان نهيں تو كچهـ بهی نهيں

دنفس کشی په هکله دتبليغ په لړ کې دناصرخسرو دابيت چې دوحدت الشهود دفلسفې نچوړ دی.

تـــوداری اژده بـــــرسر گـــــنج
بكش اين اژدها فارغ شو ازرنج

زه په دې عقيده يم چې که په سفر کې دمنزل تعين ونه شی حاصل يی هماغه اواره پاتې دي چې په وچو ډاگونو بی نتيجی باديږی دملاحسين علی پښيمانی په تللی وخت پسې يو فطری عمل دي.

زموږ لويه ستونزه داده چې تر اوسه پورې دمعاصر ادب نوی فن

پاری ډېرې د زمانې په نظر ښارو موږ تراوسه پورې لا ادبي معیارونه د ذوقونو او سلیقو له مخې سنجوو.

هماغو کلاسیکو او بې خونده کلیشو ته موږ زامې تیرې کړې دي او بیخونده شخوند پرې وهو او کله خودنام نهاد تحقیق په ړنده لاره دومره مخکې لاړ شو چې د پښتنو دلومړنی افسانه نګار سیره دراحت زاخیلی په ځای یوه هندو رام او یا یوه لرم فیرنګی ته ورپه سر کړو.

په داستانی ادب کې چې د ښځې د مظلومیت تصویر انځوریږی نو سند یافته لیکوالان یې د فحشا او بې حیایې دهڅو په توګه تعبیروی دوی دا کار اسلام ته خطر بولي ولی چې د ښځې د مظلومیت پلوی توب ددوی په نظر عذاب الهی ته بلنه ورکول دي.

د ثواب او عذاب په کیسه کې د دی عذاب څرک او د مولانا کرکتر زما په نزد دقانع دفن دعروج انتها ده.

په کوم موثر انداز کې چې دا کیسه لیکل شوی ده ګمان نه کوم چې د پښتنو په داستانی ادب کې یی تراوسه پورې مونږ ساری ومومو. زمونږ په ټولنه کې ښځه د سیکس لپاره یوه وسیله او د زیږولو ماشین دی د ښځې ټول حقوق بس همدغه دي.

رشتې قرابتونه او د قرابتونو د ټولو اړیکو تقدس د پیسو په معیار سنجول کیږی هغه څوک د فضیلت وړ دی چې پیسې ولري او د وینو او رګونو اړیکی په پیسو باندی وپلوري.

«وخت دی بدلیږی زړه د رتنګ چې نه کړې»

په مانا عصمت قانع هغه نبوغ دی چې مثال يې زه د نن په بازاری او تجارتی ليکوالو کې نه وينم قانع له نارمل خط څخه ورهاخوا دي او غير عادی توب ياليونتوب وی او يا هم نبوغ.

عصمت قانع د رياکارانو له پټو شيطانی څېرو څخه پرده پورته کوی او د رابعه بصری د اور او اوبو له امتحان سره خپل خلک مخامخ کوی ولی همدا ديوه رښتونی ليکوال خصلت او دنده وي.

اليکزاندر کپرن د مايا او پرل اس بک دښکلی مځکې ناولو نه وليکل وروسته دا عمل په اردو کې د ښايست دبازار په ناول کې منشی پريم چند تکرار کړ.

سعادت حسين منټو دچکله خانو، رنډيانو او فاحشو دردونه اوغمونه. د تنډی گوشت او کالی شلوار په داستانونو کې راپورته کړل.

استاد صديق روهی وای چې کيسه روح ته ضرورت لری اوسينگارولو ته اړه ده دروح دسينگارولو پر لار منټو محکمی ته وغوښتل شو تنډی گوشت يعنی سړه غوښه ورته توده شو او دجيل په عذابونو يې واړولو.

يوازې د قانع نه بلکه د نړۍ دسترو کيسه ليکونکو په کيسو کې دشهوانی لوړی سنگين او عبرت لرونکی مسايل په کثرت سره مطرح شوی دي.

که پښتو فلمونو ته د جنسی لوړی آرامگاه ويلای شو نوله قانع څخه بيا ولی داحق اخلو چې ددغو گنهگارو کرکټرونو له رياکاری څخه پرده

پوره کړی او د ذلتونو پټ عاملین رالوڅ کړی.

«تحریک مړشو» او «د پلار په جامه کې کیسو ته د قانع د نوی ستایل ریالیزم ویلای شو.

د قانع د کیسو کمال همدادی چې د هرې کیسی په پای کې لوستونکی د کوم بل فکر له ډوبیدو وړاندې د خپلو خوږ کیدلو جذباتو ژوبل زړه او ستومانه روح د ننداری لپاره راښولی آینده یی روښانه او په پښتو نوی کیسه کې ډېره روښانه ښکاری. د قانع د کیسو مواد یو په بل پورې مربوط او کرکترونه یی ژوندی او تهولنیز دی. قانع تر زیاتې اندازې پورې په خپلو کیسو کې لوستونکی فضایی پوښتنو ته نه پریږدي. لوستونکی د کیسی لوستلو ته هڅوی یو بله مهمه خبره داده چې د قانع پر کیسو باندې د تقلید گمان بیخی نه کیږی. له همدې امله زه دا وایم چې دا کیسی په پښتو ادب کې د یوه نوی او جدید اسلوب آغاز دي.

د ثواب او عذاب د کیسې له لوستلو وروسته ما ته د قرآن کریم دغه ارشادات په ذهن کې راغلل.

إن الله سميع عليم ١٨١ سيقول

والله سريع الحساب ٢٥٢ سيقول

له یوه انسانه که د مزاحمت حق واخیستل شی نو گویا د گور او کفن راج داری قابضه شوه د خیرنو ناخوانده سند یافته لیکوالو پرونی هڅه داوه چې د جدید پښتو او قدیم پښتو شاعری ترمنځ جبهه پرانیزي او د مترقی ادب په خلاف رجعت پسندانه خنډونه ایجاد کړي او نن بیا دلنډی کیسی په وړاندې د علامت نگاری، سمبولیزم خنډونه راپورته

کوي د پښتو ادب د مهمو ژانرونو روح هم د مغلي تسلط له کبله مزاحمت دی ځکه خو مونږ لره د قانع د کیسو په څېر د ځانګړی استایل اجتماعی کیسی په کار دي زه نور د لوستونکو او کیسو ترمنځ نه خنډ کیږم دا تاسو او دامو د قانع کیسی.

په مینه

عصمت الله زهیر پښین

۱۹ اگست ۱۹۹۸

# د دې مجموعې په هکله

ماچې کله لیک او لوست زده کړ نو د سیاست په جراثیمو مې وجود ولړل شو د درسي کتابونو پرځای به برنا حقه د سیاسي شعرونو او سیاسي لیکچرونو په لوست اخته وم څو ځله خومې د غیر درسي کتابونو دلوستلو په جرم باندي په کور کې لت هم وخوړ داسي لت چې درس ویلو ته یې لټ کړم.

بیا داسې وخت راغی چې زه په خپله د شعر په لیکلو اخته شوم خپله به مې شعرونه لیکل او په میتینګونو کې به مې اورول تشویقدلم او له شعر سره مې مینه او علاقه سیوا کیدله. زه لا په اتم ټولګي کې وم چې سیاست او سیاست بازانو پروطن باندي شین غومبر جوړ کړ په همدغه کال زندان ته ورلړه شوم، زه لا په زندان کې وم چې روسی لښکرو پر

افغانستان باندی برید وکړ دروسانو دیرغل او تجاوز په رابطه می دکندهار په زندان کې شعر ولیکه چې راسره بندی د ګرمن صاحب خورا زیات وستایلو شاید چې دغه شعر به زمالومړنی جهادی شعر وو دببرک کارمل دعمومی بخښنې په جریان کې زه هم له زندان څخه را بهر شوم اود ملی قیام په لیکو کې ودرېدم له جهادی مطبوعاتو سره مې لیکلی همکاری پیل کړه په ۱۳۶۰ کال کې دفرهنګی کارونو په ارتباط تهران ته ولاړم دایران انقلاب په ایرانی ټولنه کې عجیب خوځښت راوستی وو ټوله ورځ به دتهران پوهنتون په مخکې دکتابونو دغرفو شا او خوا تود سیاسی بحث روان وو.

یوه ورځ پر ډېر ښه بحث واوښتم څو تنو ایرانی ځوانانو دادب په باره کې خبری کولې او دخبرو اصلی موضوع یی هم داوه چې ادب دخلکو په ویښتابه کې څومره رول لری؟

دبحث ټولو ګډون کوونکو پر دی خبره باندې دنظر توافق درلود چې ادب دادب لپاره خبره یوه ارتجاعی خبره ده.

ادب باید دژوند هینداره وی او دټولنی دعامه قشر دویښتابه پیغام ولری دبحث په جریان کې یوه مشهدی ځوان په ډېر قوی استدلال سره داخبره وکړه چې تر منظوم ادب منثور ادب په ننني نړۍ کې داعتبار وړ دې او یو لیکوال په اسانۍ سره عامې ټولنې ته خپل پیغام په هنری او ادبی شکل کې نغاړلي شی له همدې آمله زموږ اوسنی انقلابی ادب باید دنثر په ساحه کې دبدلون له پیغام سره وغوړېږی او تر ټولو زیات اهمیت

باید چې لنډې کیسې او داستان ته ور کړای شي ځکه چې دادب د عصري ژانرونو سرخیل هم لنډ داستان او لنډه کیسه ده.

په هغه ورځ ناڅاپه زما پام دلنډې کیسې په لور واوښت زما دری کیسې په هماغه وخت کې په جهادی مطبوعاتو کې چاپ شوې چې له تهران څخه به می پېښور ته رالېږلې کله چې په ۱۳۶۲ کال کې پاکستان ته راغلم نو دشعر ترڅنګ به می دلنډې کیسې خواته هم توجه کوله خو کله چې په پېښور کې دسپیدې ادبی مجلې خپل نشرات پیل کړل نو لنډ داستان په رسمی ډول زموږ دجهادی ادبیاتو برخه وګرزید . ماهم خپلې لنډې کیسې ګران شهرت ننګیال ته ورکولې چې په سپیدو کې یې چاپ کړې.

-شهرت زما اوله جمعیت اسلامی څخه دبهر نشراتو ترمینځ یوازنۍ مزئ وو په تاسف سره باید ووایم چې پر تنظیمی نشراتو باندی یو عجیب کلیشه یی دګماتیزم مسلط وو دافغانیت، ملت، ملی افتخاراتو، ملی نوامیسو، ملی ګټو خبری ددوی ټولو په نزد دنیشنلیزم خبری وی اونیشنلزم کفر وو خو موږ بیا هم دملی لیکو او خطونو پر لار قلم چلولو زما ښه یاد شي په ۱۳۷۰ کال کې مادمجاهد اخبار په یوه سر مقاله کې له رهبرانو څخه دجهاد دافغانی غرور داعادې غوښتنه کړې وه پر دې خبره باندی نژدی وو چې محاکمه شم په تنظیمی کومیټو کې تر ټولو غوره خبره داوه چې دمتعلقه رهبر صفت او توصیف وشی او یا پر ځای اوبی ځایه له اسلام، خدای او رسول څخه غیر متعلقه او نا اړونده

کلمې جوړې شي. د مضمونو اولیکنو عنوانونه په ټوله دا ډول وو:

جهاد در اسلام، سواد در اسلام، صدقه در اسلام، خنده کردن در اسلام، گریه کردن در اسلام، خیز زدن در اسلام، خفتن در اسلام، خوردن در اسلام او......

په فقیر آباد کې د اسلامي جمعیت دار الانشاء وه چې یوه غټه او مجهزه اشپزخانه یې درلوده خورا ښه ازبکي پلاو به پکښې د میدلو د اشپزخانې پرسر یې لیکلي وو:

-اشپزخانه اسلامي وجهادي جمعیت اسلامي افغانستان

همدارنګه مشت نمونه ی خروار. خو د سپیدې د ادبي نهضت له پیل سره زموږ د جهاد او مقاومت ادب له کلیشه ی دګماتیزم څخه ووت او د معاصر ادب د نویو ژانرونو لکه داستان، سفرنامې، راپورتاژ، غزل، او نظم نمونې او بیلګې پکښې چاپ شوې ورو ورو څه نورې ادبي مجلې هم راووتې او زموږ جهادي ادب د یوه ادب په جوله کې راڅرګند شو که څه هم د دومره لویې تاریخي حادثې ادبي اړخ باید د سلګونو ادبي شهکارونو ښنبتن وای خو زموږ پر سر باندې د پردو سجدې ته معتاد موزیان ولاړ وو.

له استقلالیت څخه بې برخې وو او له ملت څخه بیګانه دوی به هر مستقلانه حرکت پر سر وهلو محمد حسن ولسمل لږ څه ماجراجویي وکړه د پیښور په سنټرجیل کې یې میلمه کړ.

الفت یې ځای پر ځای بوخ راواړاو مجروح بې غلبیل غلبیل کړ

دغروال جسدیې لا هم ورک کړ شګیوال یې په سپینه ورځ په عام محضر ووژلو. نور دژبې او قلم خاوندان یا خو فرار شول او یا خو هم دشیخ فریده پتبه خوله دی بهتریده دمتل عملی مصداق شول.

په پای کې فرهنګی میدان محمد حسین غمګین، خنجر، کلنګ، تبر او نښتر ته پاتی شو. فعلاً چې حالت ورځ په ورځ بدلیږی او دڅانګې په سر کې سری غوتې لیدل شوي دي نو باور لرم چې که لا سونه له ولچکونو او قلمونه له ځنځیرونو خلاص شول نوی او نا یابه ادبی آثار به تخلیق شی ځکه چې موږ دادب دغوړېدنې لپاره دومره لویه هستی لرو چې د دنیا پر سر یې بل قام او بل ملک بیخی لری نه.

حاضره مجموعه که څه هم زه ورته دلنډو داستانو مجموعه وایم خو په تخنیکی لحاظ ممکن نقادان دلنډو داستانونو نوم پې ونه لوروي له څوارلسو کیسو څخه جوړه ده په دغو څوارلسو کیسو کې څلور کیسی ماژباړلي دي. دهدایت کیسه دنفس قاتل، دبومبا کیسه دمرګ ماتی، دبنګالی بابو مظهر کیسه تشه ځولۍ او درنډۍ اباد کیسه چې پنجابی چوهدری غلام عباس لیکلې ده ژباړنې دی.

دغه کیسی ماله دی امله په دې مجموعه کې ګډې کړې چې زما ځینې کیسی دوخت دنزاکت له مخې اوس عام محضر ته دوتلو جوګه نه وي مجبور شوم دا څلور ترجمی می ور ته ډېر وهلی زما په خپلو کیسو کې به څومره نیمګړتیاوې، پڅتیاوې او خامۍ وي د دې قضاوت به هم دلنډې کیسی نقادان کوي.

له نیکه مرغه زموږ دمنګ په لیکوالو کې دلنډې کیسې ذهین متخصص اسد الله غضنفر شته دي چې په ادبي نقدونو کې یې هم تشویق سخاوتمندانه دی او هم یی قضاوت بی رحمانه هیله ده چې ګران غضنفر ددې مجموعې له چاپ څخه وروسته د نقد ښه اکاډمیکه لیکنه پی وکړی

عصمت قانع

داودل سمد خان اڅکزی کالونی

کوټه

دمیزان ۱۴ مه ۱۳۷۷

# رنډی آباد

دښاروالۍ فوق العاده غونډه را غوښتل شوې وه غونډه په ډېر ځوږ او شخول سره روانه وه دښاروالۍ سالون دغونډې په مناسبت په خاصه سليقه ښکلئ کړای شوی وو. پر دېوالونو باندې دموضوع په اړوند شعرونه او شعارونه ليکل شوی وو. دغونډې فوق العاده موضوع هماغه دبازاري او فاحشو ښځو دمرکزی بازار موضوع وه.

دغونډې ګډون کوونکو ټينګار کاوه چې بازاری او فاحشه ښځې دې دښار له مرکزی بازار څخه وايستل شي ځکه چې دټول ښار اخلاقی او تهذيبی چاپېريال يې دفساد له ګواښ سره لاس او ګرېوان کړی دی.

بايد وويل شی چې دښار په مرکزی بازار کې دچکله خانو موجوديت زمونږ دفرهنګ او کلتور پرلمن هغه تور او نه مينځل کېدونکی داغ دي چې زمونږ دراتلونکو نسلونو اخلاقی هويت هم له خطر سره مخامخ کوي.

دښاروالۍ دټولو ناحيو، کوڅو، ښاری هستوګنو حلقو اوسيمو

نماینده ګان او وکیلان چې دښاریانو سپین روبی مشران، روحانیون او معتبرین وو راټول شوی وو دوی ټولو دهمدې موضوع په اړوند وینا وې کولې یوه معتبر ښاری نماینده په خپله وینا کې څرګنده کړه:

... درنو حضارو.

رنډیانو، فاحشو او رقاصو دښار په داسې مرکزی بازار کې هستوګنه غوره کړی ده چې له یوې خوا دسوداګری مارکیټونه ورنږدې دی اوله بلې خوا څخه دښار تعلیمی مراکز ور سره بیخی جوخت او نښتی دي. له همدې امله ښاریان مجبور دی چې دهمدې مرکزی بازار له لارې یاخو دښار مارکیټونو ته ولاړ شی او یادخپلو اړوندو کارونو په خلاصولو پسی دښار تعلیمی مراکزو ته ورشی.

پردې برسېره دښار ددرنو کورنیو پاک لمنی لوڼې اومېرمنې هم له همدې بازار څخه دښار مارکیټونو او مغازو ته ورځي او مجبوری دي چې له همدې بازر څخه تګ راتګ وکړي.

درنو حاضرینو- کله چې دښار دشریفو خلکو لوڼې او مېرمنې دغه رقاصې رنډیانې او ټکسیانې وینی چې شونډان او باړخوګان یې په سرو رنګونو رنګولی وی نو ددوی په زړه کې هم دسینګار خواهش او هیله را پورته کیږي او بیا له خپلو مېړونو. پلرونو او ورونو څخه دسرخیانو، پوډرو او پینګانو غوښتنه کوي او پای یې پر دی تمامیږي چې آرام او هوسا کور یې دجنجال او اضطراب په ویر اخته کیږی او جنت غوندې کورونه په جهنم باندی اوړي درنو حاضرینو. یوه بله مهمه خبره داده چې

دهمدغو رنډیانو په وجه دښار پرنویو ځوانانو باندې هم زښته ناولی اغېزه پرېوزي.

زموږ نوی ځوانان چې دوطن دمستقبل پانگه ده دهمدغو بدنامو او بدکامو کوڅو له لارې ښوونځیو ته ځي او راځي کله چې همدغه گناه گارې ښځې په کړکیو کې دسینگار په حال کې ویني او په بې شرمۍ سره دگناه ست ورته کوي تاسی څه فکر کوئ چې آیا زموږ دغه نوی او دځوانۍ په نشه کې ډوب نسل به ددغو مردارو ښځو له شر او فساد څخه په امان پاتی شي؟ نه نه هیڅکله هم نه په دې وخت کې دښار یوبل وکیل چې له یوې مهمې ناحیې څخه یې نماینده گی کوله راپورته شو ده وویل:

درنو حضارو. زه همدا اوس دښار په یوه لویه لیسه کې معلم یم زما ارزیابي داده چې سږ کال دناکامو زده کوونکو شمیر دتیر کال ترناکامو زده کوونکو یوپه دوه زیات دي علت یې همدغه رنډیانی او مرداری ښځې دي.

یوبل وکیل چې دښار له منورینو څخه وو او کله کله به یې مطبوعاتو ته مضمونونه هم لیکل دوینا لپاره راپاڅېدو خپلې رنې عینکې یې پر سترگو سمې کړې وینا ته ین ځان برابر کر

درنو حضارو. زموږ له ښار څخه هره ورځ، حیا، عزت، شرافت، غیرت، مېړنتوب ښېگړه او تقوی کډه کوي او پر ځای یی بی ایمانی، غلا، چور لوټ تالان ناځوانی، بی غیرتی، بی مروتی او نامردي خپرېږی. دچرسو او هیروئینو وبا خوپه ښېره باندی خپرېږی هره ورځ په

ښار کې غلاوی کېږی او هره ورځ دا خبری اورو چې پلانی سړئ ډېوالي شو پلانی تجار بې پیسو شو او...

هره ورځ همدا حوادث پیښېږی دا څه حال دي زه خویی اساسی علت دڅو ناولو ښځو گناه گار بازار بولم.... چکچکې...

دچکچکو له شور او ځوږ څخه وروسته دښار یو معمر او معتبر سپین ږیرئ چې له وظیفې څخه متقاعد شوی وو او غوښتل یې چې خپل پاتی عمر دخپلو اولادونو په ښه روزنه او پالنه کې تېر کړی دوینا لپاره راپاڅېدو.

ددغه مشر په احترام په سالون کې ټول گډون کوونکی له خپلو چوکیو راپاڅېدل او دده په احترام یې لاسونه ښه په درب سره وپړقول.

مشر خپله وینا پیل کړه.

درنو حاضرینو کشرانو اوبچو

ټوله شپه ددغو بدنامو رنډیو له لاسه خوب را باندې حرام دي دمشر غږ په ژړا او غریو کې سره راونغاړل شو په ژړانده لهجه یې خپلې وینا ته دوام پسې ورکړ. چې څنگه شپه شی نو درنډیانو عاشقان های او هوی جوړ کړي دکونگړوگان په شرنگار اودتبلو په ډب ډب کې موږ خپل عبادت هم نه شو کولاي پردې علاوه زموږ دلوڼو او مېرندو پر اخلاقو باندې هم ډېره بده اغیزه پریوزي کله چې ده دخپلی وینا آخری جمله ختموله نو ژړا یې گړندی شوه.

دښاروالی ټولو وکیلانو له ده سره غمرازی څرگنده کړه ځکه چې

دده کور درنډیو دبازار په مینځ کې واقع وو.

له ده وروسته دښار یوبل مشر چې دانتیکو کاروبار یې کاوه او لوغونی آثار زښت ډېر ورته ګران وو دوینا لپاره راپاڅېدو:

ښاغلو حاضرینو او درنو ښاریانو. له بهر څخه چې کوم سیلانیان زموږ دښکلی او تاریخی ښار کتنې ته راځي کله چې درنډیو او فاحشو له بازار څخه تېرېږي نو زه له شرم او حیا څخه ټول خولې خولې شم.

له ده وروسته نوبت دښاروالی ښاروال ته ورسېد ښاروال صاحب له ونی مندرۍ وو پښی اولینګی یی وړوکی وی خو سریی بیاغټ وو په لهجه کې یې عالمانه متانت او سنګینی پرته وه. خپله وینا یی په آرامه مطمئینه او شمېرلې لهجه شروع کړه درنو حاضرینو. زه له تاسی سره په بشپړه توګه دنظر یووالی لرم چې درقاصو بازار زموږ دفرهنګ لپاره یومرګونی پیغور دي او ټولنیزې فتنې هم څه ناڅه له همدغه بازار څخه را زیږي موږ ټول دغه بازار دفساد دریښو جړېولو خومهمه داده چې ددې بازار دکاروبار تدارک باید څه خیل وشي؟

که موږ دا ښځې مجبوره کړو چې خپل کار وبار پرېږدي نو دمتبادل معاش او روزګار چاره یی هم باید وکړو دغه چاره تاسی راوښیاست؟

په دې وخت کې دسالون له مینځه دیوه ګډون کوونکی اواز راپورته شو او وی ویل چې دغه ښځې واده ولی نه کوي؟

ځوږ جوړ شو، خلکو ټولو په یوه وار وخندل او دغونډې دماتمی فضا پدل دخندا په څپو کې مات شو کله چې خنداتم شوه نو ښاروال صاحب

وویل مادا پیشنهاد څو ځله ورته کړی دی خو مشکل دادې چې درنې اوسنګینې کورنۍ دوی دخپل بدنام شهرت په وجه په خپلو کورنو کې نه شي زغملای او له مجبورو او مفلسو خلکو سره بیا دوی په خپله واده نه کوي دښاروال صاحب له وضاحت څخه وروسته دغونډې یوه ګډون کوونکی وویل ښاروالۍ ته درنډیو دانفرادي مسایلو په باب دبحث اوچیړ ضرورت نشته دښاروالۍ په وړاندې دا پرابلم پروت دي چې دا ښځې که جهنم ته ځي نوهم باید دښار مرکزي بازار خالي کړي.

ښاروال صاحب یوځل بیا پورته شو او د وضاحت په توګه یې وویل داهم ګران کار دي ځکه چې ددوی شمیر دلسو شلو او دېرشو په شا او خواکې نه دي ددې ښځو شمېر تر سلها و هم اوړي او دزرو حد ته رسیږي او بیا دغه ښځې دښار په مرکزی بازار کې دهستوګنو حویلیو دملکیت قانونی سندونه هم لري.

دا ستونزه تقریباً یوه میاشت دښاروالۍ تر غور لاندې وه بالاخره یوه پریکړه وشوه په پریکړه کې داخبره څرګنده شوی وه چې درنډیانو ملکیتونه دی رانیول شي اودرنډیو لپاره دی له ښاره ۲۰ کیلو متره لیری یو ځای وټاکل شي هلته دی دهرې رنډۍ لپاره نیم نیم جریب ځمکه دکور جوړولو لپاره ور کړای شي.

کله چې پریکړه اعلان شوه نو رنډیو په سختو احتجاجی اقداماتو لاس پورې کړ ځینو خو بیخی نافرمانی شروع کړه او درنې جرمانې یم هم تحویل کړې.

خو بالاخره ښاروالۍ خپله پریکړه په زور او جبر پر رنډیو باندې وتپله دښاروالۍ موظف هیئت درنډیو دکورونو او جایدادونو لیست تیار کړ او درنډیو کورونه دهیئت دټاکلي نرخ له مخې لیلام شول. خو په پریکړه کې دا ماده هم تصویب شوې وه چې ترشپږو میاشتو پورې به دوی په خپلو زړو کورونو کې ژوند کوي او څوک نه شي کولای دوی له خپل کور څخه وباسي.

کوم نوی ځای چې ددوی لپاره ټاکل شوی وو هغه له ښار څخه څه دپاسه شل کیلومتره لېرې وو تر پنځلسو کیلومترو پورې خو پوخ سړک تللي وو او ۵ کیلومتره لاره پخه نه وه په تېره زمانه کې شاید چې دغه ځای کومه هستوګنه سیمه وه چې اوس یې هم دکنډوالو ځینې نښې پرځای پاتې وې ددغې سیمې شا او خوا وړوکي وړوکي کلي ودان وو چې هستوګن خلک یې له معاصر ښاري فرهنګ څخه بې برخې وو.

له زړو تنو رنډیو څخه فقط څوارلس داسې وې چې له دولتي مامورینو سره یې دتېنګو اړیکو په وجه په ښار کې دیوې اوږدې مودې لپاره دهستوګنې اجازت نامه تر لاسه کړې وه. خو نورې رنډۍ مجبورې وې چې یاخود ښار په هوټلونو کې دیوې لنډې مودې لپاره هستوګنه غوره کړي او یا خو هماغه ځای ته ولاړې شي کوم چې ښاروالۍ ورته ټاکلی وو.

دلومړي ځل لپاره څوارلسو رنډیانو دښاروالۍ پر ټاکلي ځای باندې دماهروانجنیرانو لخوا دلویو لویو بنګلو او اپارتمانونو دجوړولو نقشې

ترکار لاندې ونیوې دغه څوارلس ښځې په مالي لحاظ تر نورو ښه وی اوډخپل ښایست او ښکلا په قیمت یې پانګه وال ګیراکان هم دځان په لور باندې راکش کړی وو دغه څوارلس کورونه په اساسي او پاخه ډول جوړ بدل تړوله ورځ به خښتې، سمنټ، ریګ ګاډرونه او چار تراش ورته را روان وؤ انجنیرانو به یې دودانولو چارې تر دقیق نظر لاندې نیولی وې او بنایانو به شپه او ورځ کار پکښې کاوه.

په دغه لوی ځای کې چې ښاروالۍ رنډیانو ته انتخاب کړی وو یو ځای دجومات نښې پیدا شوي ورو ورو خلکو خښتې او کاڼي پې راوګرزول دجومات مخامخ دیوی ژورې څاه ځمکنې غار وؤ دغه غار خلکو یوڅه نور هم وکیندلو بالاخره دخوړو اوبو چینه پکښې راوخوټکیده. خلکو سلواغه اود پلاستیک رشمه ورته راوړه یو خیراتی سړی د څاه څرخ راووړ اوپه څو ورځو کې دجومات څلور دیواله جوړ شول.

دماسپښین دلمانځه په وخت کې به بنایان، کارګران داهاکو اوریګو راوړونکی جوالیان اودشا او خوا کلیو اوسیدونکی خلک، راټولیدل او په جوما کې به ګڼه ګوڼه پیدا کیده.

یوه ورځ چې کوم کلیوال ته ددغې نوې مېنې خبر ورسیدلی وو راغی دجومات مخ ته یې دسګریټو او چاکلیټو یو شکور کېښود اودکانداري یې پیل کړه.

چې دسګریټ څرڅوونکی کار لږ پر مخ ولاړ نو یوبل سړی په دغه

ځای کې کاروبار تـه زړه ښه کړ پـه یوه کراچۍ کې یـې غټ دشربتو خاورین مټ کېښود او ناري یې شروع کړي «خواږه شربت ارزانه شو نصیب خوره به یو ګیلاس شربت څښي خواږه شربت مزه داره شربت خواږه شربت مزه داره شربت» په ښار کې یو میوه فروش خبر شو چې درنډیانو په نوی مېنه کې ګڼه ګوڼه زیاته شوي ده سمدلاسه یې له ښتو او کانو څخه یوه وړه چوتره جوړه کړه هندوانې او ختکې یې پکښې کېښودل او چیغې یې شروع کړې «ختکی سری هندوانې خواږه ختکی سری هندوانې ارزانه شوی ارزانه شوی ژر کوئ بیا به ارمان کوی» یو بل سړی چې خبر شو نو سمدلاسه یې دشور نخودو کاروبار راوایست.

بالاخره دجومات مخ ته څو غرفې جوړې شوې چې وړه وړه کسبګرانو خپل کارو بار پکښې شروع کړ. دماسپښین او مازیګر په وخت کې به دجومات له مخې زیاته ګڼه ګوڼه وه کارګزانو منشیانو او بنایانو به له ځاه څخه اوبه را ایستلې او اودسونه به یې کول په جومات کې دجماعت لمونځ شروع شو په یوه لیرې کلي کې داخبره دیوه ملا غوږ ته ورسېده چې په پلانې ځای کې نوی مینه جوړېږی او جومات یې ملانه لری خپله مسله یوه قدوری یو نور ظلم او یو دلایل الخیرات یې له ځان سره راواخیست او په جومات کې دېره شو امامت یې شروع کړ.

هره ورځ به له ښاره څخه یو کبابی راتلو او په دغه نوی مېنه کې به یې دکباب نغری ته اور ورکاوه دینی، بلوګو او پستې غوښې کباب خورا په زور کې خرڅېدو بالاخره یو وړوکی هوټل ځینې جوړ شو. په ښار کې

یو نانوای چې پخه ډوډۍ یې هلته چندان نه خرڅېده په نوی مېنه خبر شو ده هم سمدلاه د نانوایۍ لپاره یوه ځاله جوړه کړه او تنور یې راوایست هره ورځ یې یوه یوه بوری اوړه خیشتول او پخول د ده کار هم رونق پیدا کړ. کله کله به له ښاره څخه یو سلمان راتللو د خلکو سرونه او ږیرې به یې ور خریلی سلمان چې ولیدل کارو بار پر مخ ځي نو ده هم دلرګی یوه غرفه جوړه کړه څه سردې ګرزوم موچیان خبر شول مۆچیانو هم په نوی مینه کې کارو بار را وایست چې پر مخ ولاړل.

کومې بی پیسو رنډیانی چې په ښار کې پټې په هوټلونو کې اوسیدی هم نوی مینی ته راکډه شوې او د خپلو مځکو پر نقشو یې خیمی ودرولي.

د خوارلسو عصری کورونو رنډیانی به هم د غرمې له ډوډۍ وروسته له خپلو عاشقانو سره د کورونو د جوړېدو د کار جریان ته راتللی او انجنیرانو ته به یی د کور په هکله د خپلو ذوقونو او سلیقو فرمایشات احکامول. د مازدیگر په وخت کې به د سوالګرانو څو ټولۍ نوی مینی ته راتللی او له فاحشو څخه به یی خیراتونه غوښتل فاحشو به هم د خپلې نوې مینی د کامیابۍ د دعا په بدل کې سوالګران بی برخی نه پرېښودل.

د مادیگر مهال به د شا او خواسیمو لنډه غری ځلمیان چې کار به یی نه درلود دسیل او سات تیرئ لپاره هم دغه نوی مینې ته ور تلل او ډول ډول چیغی به یی وهلې په نوی مینه کې دانسانانو عجیب شور او ځوږ جوړ شو په پیل کې رنډیانی په ویره کې وې چې په دی چول بیابان کې به

څنګه ژوند کوو خو په دوو درو میاشتو کې نوی مینه دژوند په نښو او رنګونو باندې ډکه پکه شوه دنوی مینی په شمالی څنډوکې دیوه مزار نښې او نښانې ښکارندې شوې په خلکو کې آوازه خپره شوه چې مزار دیوه لوی ولی او دخدای پاک دخاص نازولی دی بله ورځ چې سهار خلک راپاڅېدل نو پر مزار باندی یو سور سترګی ببر سری ملنګ ناست وو دشړشمو دتېلو دوه چراغونه یې لګولي وو او پر قبر باندی یې شین پوښ غوړولی وو.

څو تنه کارګران چې دزیارت په غرض مزار ته ورغلي وو له ملنګه څخه یې دمزار پوښتنه وکړه. ملنګ په جواب کې دالله هو مستانه ناره پورته کړه او بیا یې خپل ببر سر وخنډلو او ویې ویل دا دپیر کړک شاه باچا مزار دی ملنګ دپیر کړک شا څو جلالی کرامتونه هم بیان کړل دغه مزار دخاصو عامو خلکو په زیارت ګاه باندی بدل شو.

شپږ میاشتې لانه وې تیرن شوې چې څوارلس پاخه او دوه منزله کورونه جوړ شول ددغو کورونو نقشه دعصری غوښتنو له مخې ترتیب شوی وه.

اوه کوره دسړک یوه لورته او اوه کوره دسړک بل لور ته جوړ شوی وو.

دکورونو په مخ کې یو ښه پراخ او لوی سړک و له هر کور سره څلور څلور دوکانونه جوړ شوي وو چې داوسپنې دروازې او ښه رنې رنې شیشې پکښې لګیدلې وې. کله چې بنګلې او کورونه تیار شو

نورنډیانو دنوی مینی دافتتاحی غونډې انتظاماتو لاس پورې کړ.

دپیر کړک شاه باچا دمزار تر مخه په لس گونو دیگونه بار شول دغورمی وریجو او کوفتې بوی له شلو کیلومترو هاخوا سپی او فقیران دڅان په لور راکش کړل. دخیرات په ورځ په نوی مینه کې دښار غونډی گڼه گوڼه جوړه شوه. دوی دری ورځې وروسته چې دافتتاحی میلې غونډی ختمی شوې نو رنډیانو نویو کورونو ته دخپلو سامانونو په راليږدولو باندې پیل وکړ.

ډول ډول پلنگونه، فانوسونه، الماری، چوکی، میزونه دسینگار سامان، غالی ښایسته نازکی او مهینی پردی اودکورونو دسینگارولو اوډیکوریشن په زرگونو قلمه سامانونه دنوی مینی دوه پوړیزو کورونو ته راوړل شول.

رنډیو دکورونو بهرنی دیوالونه دخپل خاص ذوق او سلیقې له مخې ورنگول په کورونو کې په دیوالونو باندې دلوړې بیې تابلوگانی راوځړیدې؛ غالی فرش شوې کله چې رنډیانی ځای په ځای شوی نو یوه اونی وروسته په کورونو کې دشپې گیسونه ولگیدل نقره یی رڼا دکړکیو له نرمو پردو څخه له لیری ځایه معلومېده یوځل بیا درنډیانو په شخصی هستوگنځیو کې د شپې دساز او آواز له څپو سره دنڅاگانو گونگړگان وشرنگېدل . له لیری لیری ځایونو څخه دعیاشانو بهیرونه دنوی مینې په لور رامات شول نوی مینی ته دترانسپورتی عراده جاتو تگ راتگ گړندئ شو، دفاحشو له کورونو سره جوخت چې کوم دکانونه جوړ شوی

وو هغه له مال څخه ډک پک شول.

په یوه دکان کې یوه مشهور بنجار کاراوبار را وایست ده سرخیانی دسینگار پوډرونه، دکریم ډول ډول بوتلونه، خوشبویي صابون، نکریزې، دزلفو قیده کان او نور شیان په دوکان کې کېښودل په نورو دکانونو کې حلوایانو، بزازانو، چیني فروشانو او... کارو بارونه را وایستل په یوه دوکان کې دویډو ایډیو دفیتو او کرایي وی سی آرونو کارو بار شروع شو او په بل دوکان کې دراډیوگانو د ترمیم او پاکولو دوکانداري پیل شوه .

ډېرو مستریانو دوکاندارانو او مغازه دارانو دنوی مینې په دوکانونو کې دکاروبار لپاره متې راونغاړلې.

په یوه دوکان کې خود موسیقي د آلاتو د جوړېدو کارو بار شروع شو په دغه دوکان کې تبلې، هارمونیي، ربابونه، ستارونه درقص لپاره زنگونه او نور شیان د پلورلو لپاره کیښودل شول.

په څو میاشتو کې درنډیانو دنوی مېنې بازار دیوه تاوده اوکاروباري بازار په جوله باندې و اوښت کله چې دبازار دکامیابي اوازې په ښا او خوابازارونو ښارونو او کلیو کې شروع شوی نو دملکیتونو تجارانو دنوی مېنې دښا او خوا مځکو رانیولو ته ملا وتړله ډېرو مځکې اوداوسیدو دځایونو نومره ایز پلاټونه په نغدو چغدو روپو باندی رانیول. په بازار کې درهنمای معاملات دلالان په کار اوبار بوخت شول دنوي مېنې مځکې تر طلا هم په بیه لوړی شوې هرچا کوشش

کاوه چې په نوې مېنه کې دهستوګنې لپاره يوه نومره مځکه تر لاسه کړي په نوې مېنه کې پر رنډيو برسيره شريفو اوسپين ږيرو خلکو هم داوسيدلو لپاره دځمکې نومرې رانيولې په ډېره لږه موده کې نوې مېنه په يوه ښار بانډې بدله شوه. يوه شپه عياشانو او لوچکانو ديوې رنډې پر سر ښه خونړې نښته سره وکړه دسوډا بوتلونه، کانې چاقوګان او خردومان په آزاده توګه استعمال شول. پنځه تنه لوچکان او پايلوچان سخت ژوبل شول دحکومت امنيتي ارګانونو له دې پيښې وروسته په نوې مېنه کې د پوليسو دوه سرماموريتونه پکار وګمارل. په لومړي سر کې دنوې مېنې نوم رنډې آباد وو خو دنوې مېنې شريفو خلکو ددغه نوم پر خلاف احتجاج وکړ

حکومت له لرغون پيژندونکو محققينو څخه وغوښتل چې دنوې مېنې زوړ او لرغونې نوم راپيدا کړې محققينو هم متې راونغاړلې زاړه کتابونه يې راوپلټل له څو ورځو څيړنو وروسته يوه محقق دنوې مېنې زوړ نوم ومونډ دانوم اننډي وو. سږ کال دانندې ښار دبنسټ ايښودلو له وخته څخه تر اوسه پورې څه دپاسه شل کاله تېرېږي په دغو شلو کلونو کې دانندې ښار دنفوسو دشمېر له مخې يو ګڼ هستوګنه ښار دی. ښار ته دبرېښنا څلور برېښنا کوټونه جوړ شوي دي ښار ته داورګاډی پټلۍ هم راغلې ده دانندې دښار خپله ښاروالۍ ده چې انتخابي ميکانيزم لري په ښار کې يوه زندان هم شته دنفوسو شمير يې تر يولک او پنځوسو زرو کسانو ور اوښتی دی په اننډې کې څلور ليسې پنځه منځنۍ ښوونځې ،

یو دار المعلمین او اته لومړنی ښوونځی شته.

پردې برسیره څلور سینماګانی ودانی شوې دی. د مطبوعاتو شمېره هم د ملاحظې وړ ده له اننډی څخه دوی ورځپاڼی دری اونیزی لس میاشتنی جریدې خپرېږی څلور بانکی څانګې هم کار کوی چې دوی یې د ډېرو اعتباری بانکونو څانګی دي. هسې خو ټول ښار ښکلی صاف او ستره دې خو تر ټولو ګرم بارونقه او له ګڼې ګوڼې ډک بازار هماغه درنډیو او فاحشو ښځو بازار دی چې د ښار لوی لوی تجارتی مرکزونه پکښې دي.

داننډی د ښاروالی فوق العاده غونډه رابلل شوې ده سالون له ښاری وکیلانو ډک دي د غونډې د بحث موضوع د بازاری او اره ښځو موضوع ده چې څه خیل باید د ښار له مرکزی بازار څخه وشړلی شی ځکه چې د دغو مردارو او بدنامو ښځو موجودیت د انسانیت، شرافت او فرهنګ پرلمن باندی یو تور داغ دي.

یو ویناکوونکی چې غښتلی نطاق دی په خپله وینا کې وایی:

نه پوهېږم د کوم مصلحت له مخې فاحشو او رنډیانو ته د ښار په مرکزی برخه کې د هستوګنې ملکیتونه ورکړل شوی دی. بالاخره ښاروالی پرېکړه وکړه چې داخل دی رقاصی له ښار څخه ۴۰ کیلومتره لیری وشړلي شي.

# د پلار په جامه کې

زه چې له ښاري بس څخه راکوز شوم نو هغه تر کوره پورې تعقیبولم چې د کور په دروازه ننوتم نو هغه د کور د دروازې په مخ کې په لوړ آواز وویل دا د رحمت کور دی؟

زما مور ورته وویل:

ته څوک یې؟

هغه وویل لږ خو تر دروازې پورې راشه.

زما مور چې دروازې ته ورغله نو راغلی میلمه ورته وویل زما اندیوال رحمت همدلته اوسیدلو.

خو مور مې ورته وویل هغه د خدای په کار وو دا شپږ میاشتې کیږي وفات شوي دي زما د مور په ځواب کې یې وویل:

هو زه هم خبر شوي یم خدای دې وبخښي زه دا لس کاله کیږي چې له

ملک څخه دباندې وم رحمت خو زما دوړ کتوب انډيوال وو زه د دې لپاره راغلې يم چې د رحمت دانډيوالی حق ور پر ځای کړم خدای دی وبخښې يوه ته او يوه لور تري پاتـه ده زه به اوس ستاسی خدمت کوم که خدای کول تاسې به اوس په ساړه باد باندې هم نه وهم د رحمت مسکين خو پرما باندې غرونه غرونه احسانونه دی خود احسان بدل احسان دی زه خو راغلی يم چې د احسان قرض ادا کړم زما خونيت صاف دی گورو به که خدای پاک په دی لاره کې زما مرسته وکړه توکل پر خدای.

زما مور پوښتنه ترې وکړه .

نوستا نوم څه دي؟

«زما نوم امانت دي شايد رحمت مسکين به زما په هکله څه ويلي وي.

هو رښتيا د رحمت مسکين هغه لور چېرې ده اوس به لويه شوې وي او هوښياره به هم وي مکتب ته ځي سبق وايی کنه؟ د رحمت دلور په هکله زما انديښنه ډېره ده خير اوس زه راورسېدم دلور خدمت به يې داسې کوم لکه زما انډيوال چې کولو زه اولاد نه لرم د رحمت اولاد زما اولاد دي. د رحمت لور اوس زما لور ده، زما خپله لور زما سکه لور دخپلې لور دژوند سمبالتيا په دې بوډا توب کې زما لوی ارمان دی».

زما مور چې د ميلمه داخبرې واورېدې نو هغه يې د مليمنو کوټې ته را وغوښت.

مور مې شنې چای ورتـه دم کړې ماچې چای د کوټې په دروازه کې

کښېنودی نو هغه راغبږ کړو.

« راشه راشه زړښې لورې زمابچې راشه نام خدا پښغله شوی يې » زه وشرمېدم ژر کورته ولاړم له مور نه مې پوښتنه وکړه.

بيو داڅوک دی؟

مور مې راتــه وويل: بس دا ملايکه ده خدای پاک زموږ کومک تــه رالېږلی ده « ته ورته و گوره څرنگه پاکه سپينه ږيره يی ده » ستا له پلاره چې څه پاتی وو هغه پرتمامیدو وو ماشپه او ورځ دعاوې کولې چې خدایه پرده مې وساتې. اوس ماتــه دامعلومه شوه چې زما دوعاگانې قبولې شوې ماخوږيېر مبارک هم رانتگولی وو ژر کوه ددوغږو اوړه دخدای پــه رضا ورکړه چې ما دخيرات لپاره لــه بوجی اوړه را اخيستل نو مور مې راتــه وويل پربږده اوړه ورشــه سلام ورتــه وکړه ولی شرمېږې ستاد پلار انډيوال دي زه پــه ربږد يدونکو قدمونو دميلمنو کوټې ته ورغلم خو مور مې دکوټې پــه خولــه کې راتــه ودريده.

ميلمه راتــه وويل راشه لور جانې زما بچې مه شرمېږه زه ستاپلار يم زما انډيوال چې کومی ښېگړی لــه ما سره کړی دي اوس زه دهغو بدل تــه راغلی يم. زه دهغــه لــه عـطوفت څخــه ډېره متـاثره شوم پر سر يی لاس راتـير کړ سترگې يې لــه اوښکو ډکې شوې پــه لهجه کې يې بلا مينــه او عاطفه پرتــه وه.

يولاس يی پورتــه ونيو اوبل ښکته راتــه ويی ويل.

تــه دومره کی وې چې زه لــه هېواده دباندې ولاړم لــه رحمت مرحوم

سره به کله کله بازار ته هم راتلې ستا نه شی په یاد ؟

اوبیا یې مخ د کوټې د دروازې خواته ور واړولو « ورېنداري د کور لګښتونه خو یېخي ډېر دی ګراني هم ده له مرحوم څخه چې څه پاتې وو. هغه به اوس خلاص شوی وی خیر اوس زه د کور ټول خرڅونه پرغاړه اخلم تاسې غم مه کوئ.

مور مې د دروازې شاته وویل. هغه کور مو په کرایه ورکړی دی په هغه کرایه ګوزاره کوو. -

خو میلمه وویل په کرایه به څه ګوزاره وشي .

ژر یې جیب ته لاس کړ د پنځو سوو شولوټونه یې راوکښل او ماته یې وویل لوړ جانې دا دی مورته ورکړه خدا زده ستا پلار به داسې څونې نوټونه په ما باندې لګولې وې حساب یې هم نه راته معلومېږي. زه به د کور خرڅونو ته حساب وکړم او هره میاشت به د کور خرڅ په نقدې شکل درته رالیږم اوس تاسې د یوې میاشتې لپاره ګوزاره پې وکړی خدای مسبب الاسباب دی. زما مور لوټونه په صندوق کې کېښودل او د شکرانې نفلونه یې ادا کړل. زما مور ډېره خوشحاله وه هغې فکر کاوه چې خدای پاک مورږ ته یو مستقل سرپرست په ګوتو راکړ خو مور مې څه خبره وه چې دا زما د پلار انډیوال هم وو که نه ؟

بوډا داسې خبرې وکړې چې زموږ د کور د ټول حال احوال درک تری معلومېدو ځکه مې مور په بوډا باندې باور وکړ او ماته هم د هغه خبرې ریښتینې معلومېدې له دې وروسته به هغه هره ورځ زموږ مکتب ته

راتللو او ماته به يې لور لور ويل كورته به راتللو اوماته به يې ويل راشه لور جانې له ماسره كښينه زما ستا پر سترگو باندې درحمت مسكين دسترگو مينه ماتېرى راشه لورجانې يوه ورځ زما مور بوډا ته ووى چې زرينه له دولسم ټخه خلاصېږى ځاى ورته وگوره زه وشرمېدم هغه چې زما شرميدونكى كوز سرته وكتل.

ترشونډو لاندې يې عجيبه نابلده موسكا وكړه سريې وښوراوه او بيا يى وويل په يوڅو ورځو كې به هرڅه سم شي.

بوډا ماته يو ځور نور د پنځوسوو روپو نوټونه راكړل اوراته ويى ويل دادى مور ته وركړه زه چې را ولاړه شوم نو مور مى هم په دروازه كې په نيم نيمايى شكل دبوډا په وړاندې ښكاره شوه.

زما ببو دومره بوډى هم نه وه كه سپين ږيري حاضر شوي واى چې واده ور سره وكړى نو داكار كيداى شواى ځكه كه ببو انكار هم كړى واى دسپين ږيرى احسانونو هغه پر اقرار راوستلاى شواي په دي كار كې هيڅ ډول ماته گوډه نه وه بلكه دا كار نيك كار وو خوسپين ږيرى زما دكونډى مور خواته پاملرنه نه كوله دهغه ټوله پاملرنه زما خواته وه زما د تعليم خواته اوپه اصطلاح زما دژوند دجوړېدو خواته.

سپين ږيرى تر شاهيڅوك هم نه درلودل خوپه ښار كې يې څو لوى او ښكلى كورونه درلودل دنور جايداد مايداد خاوند هم وو دلوټونو كمۍ يى نه وو . يوښه نوى موټر ور سره وو چې له لويو خلكو سره به يى په چكرونو كې كار ترې اخيسته.

کله چې زه له دولسم ټولګي څخه پوهنتون ته ولاړم نو یوه ورځ سپین ږیری راغی زما مورته یې وویل: دا زما لور پوهنتون ته په پښو روانه وی زما زړه دی چې یو نوی موټر ورته واخلم.

زما مور ورته وویل ستا خپله لور ده چې څه دې خوښه وی هغه وکړه.

«هو کله چې زما لور په موټر کې پوهنتون ته ولاړه شی نو د بدخواهانو به زړه پرق وچوی دلویو خلکو لوڼې به یې په لوی نظر وګوري زه سباله موټر سره راځم. پېغله لور له موټروان سره تنها په موټر کې پوهنتون ته لېږل ښه کار نه دی زه به خپله موټر راولم او زه به یې پوهنتون ته بیایم».

ماچې داخبرې واورېدې نږدې وو چې له خوشحالۍ بې هوشه شم ماد غټانو لوڼې لیدلی چې پوهنتون ته به په موټر کې راتلی او مابه دحسرت په سترګو ورته کتل د پلار په ژوند کې زما په موټر کې پوهنتون ته دتګ ټول امیدونه ختم شوی وو او د پلار له مرګه وروسته خو زما په خوب او خیال کې هم داخبره نه راتله چې زه به په موټر کې سپرېږم هغه هم په شخصی موټر کې.

زه ښته خوشحاله وم بوډا زما پر سر لاس راتیر کړ او په خورا عاطفانه لهجه یې وویل زه به تاد ټول عمر لپاره په موټر کې کښېنوم بوډا زما تندی ښکل کړ بالکل داسې لکه کوم پلار چې دلور تندی ښکلوی زما مور ددروازې ترکونجانو موړ ته کتل زما دمور لخوا دسپین زیري په

دي حرکت باندی داعتراض کومه نښه دهغې په څېرې او روحیاتو کې معلومه نه شوه. زما مور ډېره خوشحاله وه او په دوعاګانو یې خوله خلاصه کړې وه.

ماته یې وویل: لکه چې دشینکي اسمان هم ستا پریتیمي باندی رحم وشو او تاته یې پلار راولېږلو پلار به هغه څه ستا لپاره نه وو کړی لکه داچې یې کوي زه په موټر کې دچکرونو زښته ډېره لیواله وم بوډا زما لپاره موټر واخیست سهار به یې له کوره پوهنتون ته وړم اودرخصتي په وخت کې به یې له پوهنتون څخه کورته ور اوړم.

ماهره ورځ من من غوښنه اخیسته بوډا یوه ورځ راته وویل:

لورجانې: ستا جامې داسې نه دی لکه دلوړی طبقې دنجونو تاته به څو جوړې داسی کالي او جامې اخلم چې دلوړی طبقې نجونی یې اغوندی اوبله ورځ یې دښار دعصری جامو مارکېټ ته بوتلم دلوړی بیی اته جوړې جامې یې راته واخیستي پای زار یې هم دلوړی طبقې دنجونو راته واخیستل سرخي پوډر. ډول ډول عطرونه شامپوګانی صابونونه او ... څه درتم وواېم هرڅه یې راته رانیول.

ماچې کله دسودا ډک بکسونه کورته راوړل مور مې شک واخیست ماته یې وویل: آخر داسړی دومره پیسی پرمونږ باندی ولې شیندی وجه څه ده خو بوډا چې زما دببو په شک باندی و پوهیدلو نو زما مورته یې وویل:

«ورینداریې ته څه خبره یې رحمت مرحوم به په ما څومره پیسې

خرڅی کړي وي ماخو دهغو روپو زکات لاهم په تاسی باندی نه دی خرڅ کړی. او بیا زرینه جانه خو زما لور ده زه خپل اولاد نه لرم پر زرینې باندی دخپل اولاد ارمان پوره کوم.

دهغه پر نیک نیت باندې شک کول ډېر گران وو هغه به همیشه ماته لور لور ویل په همدې کلمه یی خوله نه ستړی کېده چې لور لور لور...

زما هم ټولگیوالو له دې خبری څخه مسخره جوړه کړه یوبل ته به یی په غوږ کې ویل چې لور لور لور لور... یوه ورځ دصنف پر توره تخته لیکل شوی وو «لور» استاد چې کله ټولگي ته را ننوت سترگې یې پر تخته ولگېدې ناڅاپه یی زما خواته وکتل او بیا یی په تخته پاک باندی دلور لفظ رنگ کړ دلور په لفظ کې یو مبهم راز پروت وو چې زما هم ټولگیو الوحس کړی وو او ماته هم دیوه مرموز راز الهام شوی وو.

په همدې وخت کې بوډا لږ څه خپل لاس ونیو او زما دمور شک هم رفع شو دښه ژوندانه ارمان دهرې پیغلې په زړه کې وي موټر. پوخ کور، تلویزیون، تلفون او داسې نور عصری امکانات به دچا نه خوښېږي.

زه به همیشه له بوډا سره په موټر کې گرزیدم یوه ورځ ما بوډا ته وویل ابا ته ولی ماته خپل کور نه راښیې.

بوډا سمدلاسه موټر ته دکور په لور حرکت ورکړ.

دبوډا کور نو کور وو. واه واه. ښه عصری بنگله یی وه په سالون کې یې انگریزی کوچونه پراته وو چې پکښې کیناستې نیم گز به نور مخکې

ته ورښکته کیدلې.

زما په زړه کې راتیر شوو چې زرینی کاشکی ددې بوډا اصلی لور وای نو ددی مانۍ موټر اودی ټولو امکاناتو وراثت به ستا وو.

زه څو ورځې له بوډا سره په موټر کې وګرزیدم یوه ورځ څه وشول بوډا زه چکر ته دبولو پر ځای سیده خپل کور تـه بوتلمه دسالون پر ځای یوې بلې کوټې ته ور وستم پر تور میزباندی یو ښکلی تلویزیون پروت وو له ماسره په خوږو خوږو خبرو لګیا شو راته ویی ویل نن یو ښه فلم درباندی ګورم فلم خودی خوښ دی ماهم درضایت په دود خپل سر ورتـه وښوراوه لمر لویدلو چې دبوډا خانـه سامان دوه ګیلاسه شربت راوړل عجیبه شان شربت وو ماچې لومړی غوړپ ستونی تـه ور تېر کړ خوندیې تریخ غوندی وو په ستونی کې مې غوړپ ونښت بوډا راته وویل په آرام آرام یې وڅښه دا خـاص انګـریزی شـربـت دي دا ډول یې چښبـه بـوډا پـه خپـلـه غـوړپ ترستونی تېر کړ. ماهم زړه نازړه ګیلاس ټول وچښلو زه نه پوهیدم چې په شربتو کې نشـه شتـه. پـه زړه اوذهن مې عـجیبه عـجیبه خیـالونـه را اوریدل هرڅه راتـه ښکلی معلومیدل. زه نـه پوهیدم چې ماهغه دخبرو ځواب څه خیـل ورکاوه خو بـوډا یوبـل ګیـلاس هم را بانـدې وچښلـو. وروستـه بیا خانـه سامـان ډوډۍ راوړه نه پـوهیـږم چې ډوډۍ مې څنګـه وخوړه اوبوډا یوبل ګیلاس پرسر پورته کړ دبوډا سترګې راووتی. په اوتو بوتو لګیا شو مابه کله دهغه خبرې ښې اوریدلې اوکله هم بدې.

خو آخر هغه زما خواته ډیأ رانږدی شو پـه ماکې دومره سبکه نـه وه

چې هغه منع کړم ماته دنیشی په جهان کې هیڅ نه معلومیدل زه ډېره بې وسه وم اوس چې کله کله هغه لحظې را یادوم وجود مې رېږدي زه نه پوهېږم چې مابه مقاومت کړی وی کنه؟ مابه لاس او پښې خوځولې وی کنه؟

زما نور څه نه یادېږی صرف دومره می یاد دی کله چې هغه زما پر توګانې خلاص کړ اوزما پرتوګ یې دلینګو خواته کش کړ نو ما ورته وویل:

وای ابا وای ابا داڅه کوی. زه خودی لوریم تاخو ماته لور ویلی دی او دامی هم یاد دی چې هغه راته وویل «په لور ویلو سره خو ته زما لور نه جوړېږې ته خو زما دخپلې وینی لورنه یې»

څه سردی ګرزوم هغه هم شپه وه چې تیره شوه زه چې اوس هم هماغه شپه را یادوم دسرو ښتان مې جګ جګ ودرېږي کله کله له ځان سره فکر وکړم چې راشه دهغې شپې ټول احوال په مربوط او منظم شکل سره دیوه داستان په توګه ولیکه خو دشرم له لاسه داسی نشم کولای.

دهغې شپې نیشه دهغې شپې لوڅ اولغړ وجود دهغې شپې شرموونکی خاطرې داهرڅه مې دذهن په هنداره راځی خو خوله اوقلم مې ملګرتیا نه راسره کوی. نه یې شم لیکلاي. هغه شپه هم یوه شپه وه چې پرما تېره شوه.

چې سبا شوه نو بودا زه په خپل موټر کې کورته راوستم چې دکور دانګړ په دالانچه ورننوتم نو حامد ګوته په غاښ راته ونیوه - ماته یې

وویل چې مور دی د کوما په حالت کې ده دشپې چې ته را نغلی نو د مور حالت دې بیخی زیات خراب شو کله به راپورته شوه دوعاګانې به یې کولې او کله به په مخې پریوته د سجدی په شکل به یې له خدای پاک څخه څه غوښتل.

دا دوعایې ډېره ډېره کوله چې خدایه زما دلور عزت وساتې.

دشپې نیمایی وه چې د مور حالت دې ډېر خراب شو دخبرو کولو توان یې ختم شو زه دشپې ډاکتر ته ولاړم ډاکټر راته وویل چې دزړه حرکتونه یې کمزوری دی آرام ته یې پرېږده ، حامد په خبرو خبرو کې وژړل ماهم ور سره وژړل او دواړه دببو کټ ته ورغلو . ببو په کټ کې بې هوشه پرته وه ماژر پوړونی پر سر سم کړ اوسیده دهماغه بوډا کور ته ورغلم.

بوډا دخپل کور په ښکلی اومجهز سالون کې له څو تنو نورو غټانو سره ناست وو هماغه بوی ګن تروه او ترخه شربتونه یی چښل دکومو په وجه چې زما پیغلتوب ولوټل شو.

بوډا چې زه ولیدم سمدلاسه را ولاړ شو او په وار خطا لهجه یی راته وویل څه چل دي ما ورته وویل: دشپې چې زه دلته پاتې شوم دمور زړه می حرکتونه کمزوری کړي دي او اوس دکوما په حالت کې ده.

بوډا ژر موټر ته اشاره وکړه او زه یې په موټر کې کښینولم.

بوډا زما دمور دعلاج په باره کې ډېری روپی دباد په مخه ور کړې دعلاج هرډول هڅه یی وکړه خو اخر یوه ورځ زما دمور زړه دتل لپاره له

حرکت څخه ولویدلو.

بوډا زما د مور غم له ماسره وژړلو د خیرات اسقاط او زما د مور د تدفین او تکفین خرڅونه یې ټول له خپل جیب څخه ورکړل زما د مور د مرگ تر څلوېښتو ورځو پورې هغه له ماسره هرڅه وکړل ډیر مصرفونه اولگښتونه یې وکړل.

یوه شپه ما بوډا ته وویل: چې تردې گناهونو خو دا ښه ده چې واده وکړو نکاح وکړه خو بوډا راته وویل:

داکار به ښه نه وي له دې کاره څخه غټه بدنامې جوړېږي دا ډیر بدنامه کار دې ماورته وویل: چې دا زناگانی بدنامی نه ده نو نکاح بیا څنگه بدنامي ده؟

بوډا خپلې اوږې وښنډلې اوبیا یې راته وویل:

نادانې نجلکۍ ته نه پوهېږې. له سپین ږیری سړی سره د پیغلې نجلۍ واده ډیره ستره بدنامی ده خلک به ډول ډول تبصرې کوي ماورته وویل: نو بیاد پاخه عمر له یوې مجبوری ښځې سره واده وکړه د پیغلو نجونو پیغلتوب ولې لوټې د پېغلو نجونو ژوند ولې خرابوی زما لهجه سخته وه بوډا له یوی حرامی موسکا وروسته ویل:

دژوند خرابول؟ داخبره سمه نه ده زه ژوند نه خرابوم زه ژوند جوړوم ته لږ څه فکر وکړه ما ستا ژوند خراب کړی دی که مې جوړ کړي دي ماله تاسره څه څه ونه کړل داستاخوښه ده چې څه وایې هماغه. وایه ما ورته وویل:

تاخو زما پښغلتوب ولوتلو اوس به څوک پیداشي چې له ماسره واده وکړي؟

بوډا یوځل بیا له حرامی توب څخه ډکه خندا وکړه او ویی ویل:

ستاسو لپاره دژوند مفهوم په واده کې نغاړل شوی دی خو همدا واده دی چې دانسان آزادی سلبوی.

په واده باندې ژوند نه جوړیږی بلکه تباه کیږي که ته غواړي زه به ستا واده هم له یو چا سره وکړم خوبیا به پښیمانه یې هغه ډیر مطمئن وو اوپه خورا مطمئنه لهجه یې خبرې کولې خو زما غصه بیخی زیاته شوه په قهرشوم ماورته وویل:

بی حیا ، بی ایمانه، نه له خدایه ډاریږې نه دشریعت خیال ساتې نه دایمان نه داسلام داځومرد غټ دوس یی ماخوته نه پېژندې. بوډا په هټ هټ وخندل او راته ویی ویل: لږ څه ساړه وخوره دومره مه گرمیږه ته خویبخی دارتجاعی توهماتو ښکار گرزیدلی یی ته خویبخی وروسته پاته یی.

داسیاست مداران گوری داټول خلک مذهب، دین ، شریعت اودخدای او رسول نوم دخپلو گټو لپاره استعمالوي اوبیا ځانونو ته غټ غټ مشران وایی.

ته ووایه: زه به غټ گنهگار یم که هغه لیډر چې داسلام په نوم دمسلمانانو پر سر دباروتو ددوزخی اور باران اوروي.

ځینې خلک دین دسیاست لپاره استعمالوی اودسیاست په وسیله

خپل غرض ته لاسه کوي ماهم سیاست وکړ ځان مې درته پلار کړ او ته مې دځان کړي او اوس هم درته وایم چې دواده په کیسه کې مه کېږه او بیا زه څلور کاله له بوډا سره وم په میاشت کې به مې دری شپې دبوډا په بستره کې تیرولی بوډا هم زما دژوند تهول لګښتونه پرغاړه اخیستی وو.

ماله څو تنو نورو ځوانانو سره هم دیارانې اړیکې دشهوت داشباع تر سرحده پورې ساتلی وی خوبوډا نه خفه کیدو. خو څلورم کال بوډا یوه بله لور پیدا کړه زه له پوهنتون څخه فارغه شوم دانګریزی ژبې دزده کړې په وجه په یوه بهرنی موسسه کې په کار بوخته شوم.

دکار په سلسله کې له خپله ښاره دلته راولیږدیدیم اوس نه پوهیږم چې بوډا به ژوندی وی کنه؟

هغه زما پیغلتوب لوټ کړ خو زما ژوند یې هم جوړ کړ زه اوس ډالری معاش اخلم ژوند مې ډیر ښه تیریږي خو کله چې دبوډا په هکله فکر کوم نو ناڅا په مې په خوله باندی داخبره راشي څه حرامی سپین ږیری وو دپلار په جامه کې یې څه کارونه وکړل.

پېښور - حیات اباد

دتلې ٦-١٣٧٦

# دمرگ ماتی

دجنوبي افريقا له ادب څخه

جګړن ډرابن چې کله دتولو دښار اداري واکمنی په لاس کې واخیستله نو سمدلاسه یې د تورپوستی لیډر اومبا اودهغه دملګرو دنیولو حکم صادر کړ.

په دوهمه ورځ یی دسیمی په مطبوعاتو کې یوه سخته اعلامیه چاپ کړه په اعلامیه کې لیکل شوی وو.

«تورپوستی تروریستان باید وپوهېږی چې وروسته له دې دهغوی هیڅ ډول ورانکاره عملونه دبخښلو وړ نه دي.

مظاهره کوونکی اوپه اصطلاح دحقوقو غوښتونکی دمظاهرو او ښاری میتینګونو په وخت کې ضربه کیږی اودمرګ کندی ته ورلویږی له

همدې امله مونږ دسختو عکس العملونو مخکینی اعلان کوو. »

دجګړن ډرابن دسختو او ظالمانه عملونو نتیجه په ښار کې په یوه مرګونی سکوت باندې تمامه شوه. دښار واټونه کوڅې او مارکیټونه درکود غبرږی ته ولویدل جګړن ډرابن یو جابر ظالم اووینی څښونکی پوځی صاحب منصب وو جګړن ډرابن ته چې چېرته هم وظیفه ورکول کیدله هماغلته یی په ظلم اوبی رحمی سره خپل احکام عملی کول.

ده دجنوبي افریقا په نورو ښارونو کې دتورپوستو ډیر غورځنګونه تهکولی وو خو اوس دتولو دښار وار وو چې دجګړن ډرابن دظالمانه حکمرانۍ وغبرږی ته ور تیل وهل شو.

کله چې جګړن ډرابن دتولو دښار اداري واکمنی په لاس کې واخیستله نو سخت پوځی مقررات یې وضع کړل دتولو دښار تورپوستی اوسیدونکی چې پخواهم په مشکلاتو اخته وو اوس یې دژوندانه ستونزې او ربړې نورې هم پسی سیوا شوې.

دری کاله په همدغه مرګونی سیراسیمګی کې تېر شول چې سپین پوستو حکامو داکار دنظم او امنیت په نامه سره تعبیر کړ.

حکامو له درو کالو وروسته اومبا او دهغه ملګری له زندان څخه خوشې کړل خو اوس داومبا دسترګو په وړاندې بیاهماغه صحنې وې.

هماغه وږی تږی خلک. هماغه بی دوا رنځوران هماغه بی روزګاره کسب ګران اوهماغه بی تعلیمه ماشومان چې اومبا به دافریقا دنیکمرغه نسل په سترګه ورته کتل هرې خواته ستونزو مشکلاتو او

درنو مسایلو دافریقا د تورپوستو خلکو په گریوان کې لاس اچولی وو.

اکثره تور پوستو ځلمیانو به له اومبا پوښتنه کوله مگر موږ ته به پرخپله ځمکه باندې څه وخت واک او اختیار راکول کېږي؟

داومبا ځواب به همدا وو چې ډیر ژر ډیر ژر خو اومبا پوهېدلو چې ددې لنډ سوال دځواب لپاره څومره ستره مبارزه په کار ده او څومره ډېر امکانات په کار دي.

اومبا به عموماً لږ خبرې کولې او هرې پدیدې ته به یې دحقیقت په سترگه کتلو دعامو رهبرانو په څېر دغوړو کلماتو بې معنې ویناوې او بې هدفه مظاهرې داومبا دریالیستیک خصلت په طبیعت کې نه ځائیدلي.

خو اومبا چې به کله په دړنه او روانه ژبه دخپلو خلکو دسرنوشت او مبارزې په باب خبرې کولو نو دعامو خلکو زړونه او ذهنونه به یې دځان په لورې راکښل ډېرو تورپوستو مبارزانو دده تر شا دمبارزې کرښې جوړې کړې او دده دلارښوونو پیروی یې فرض گڼله داومبا کورنۍ دتولو دښار دنورو کورنیو په پرتله ډېره وړوکې وه داومبا صرف دوه اولادونه وو. یو زوی فلکا او یوه لور کسابو نجلۍ له هلک څخه دوه کاله کشره وه.

دیارلس کلن فلکا ته دجگړن ډرابن په کور کې وړیانوکری پیدا شوې وه او اومبا دا ذلت په دې خاطر قبول کړی وو چې له همدغه کار سره فلکا ته په ښار کې دتعلیم حاصلولو اجازه هم ورکړ شوي وه دتولو دښار نورو ماشومانو ته په ښار کې دښوونې اوروزنې چانس نه وو میسر

دفلکا خور کسابو یوه عامه تورپوستې تجلي وه.

دوړخې به یې له خپلې مور سره دکور په کارونو کې مرسته کوله او مازدیګر به یې دسپین پوستو دپوځ اسانو ته واښه رېبل.

داومبا پلار په تولو کې دځر جریبه قیمتي ځمکې مالک وو او دا ځمکه دومره ډېره وه چې په تولو کې بل چا دومره زیات جایداد نه درلوده.

خو اوس ددغې ځمکې غله او حاصلات ټول دولتي ګودامونو ته لیږدول کېده دسپین پوستو اقلیتي حکومت اومبا په دې خاطر دخپلې ځمکې له حاصلاتو څخه بې برخې کړی وو چې اومبا دتور پوستو دحقوقو علم بردار وو خو اومبا دامحرومیت زغملی وو.

کله چې به یې دحقوقو خبره کوله نو دافریقا دټولو تورپوستو خلکو دحقوقو رنګ به پرې غالب وو. کله چې به ماښام اومبا په خپله بستره کې وغځید نو دافریقا دخلکو ژورو رنځونو به یې دذهین فضاء تسخیر کړه خو ډېر ژر به دفلکا معصومو سوالونو دځان په لورې وروکاږلو.

بابا – داسپین پوستکی مور دځان په څېر انسانان ولې نه بولي جګړن مور ته ولې په دومره سپکه سترګه ګوري؟

خو اومبا به دخپل زوی سوال ته په ډېره مینه ناکه لهجه ځواب ورکاوه بچیه، لکه څنګه چې ټول تورپوستي ښه خلک نه دي همدا رنګه ټول سپین پوستي انسانان هم بدنه دي.

داخو فقط دګوتو په شمېر څو تنه ظالمان دي چې دپیسو او وسلو په

زور غواړي خلک دځان غلامان کړي ترڅو پورې چې له ظالمانو څخه داقوت نه وی اخیستل شوی ترهغو مظلومان نه آزادیږی اوظالمان له قوت څخه هغه وخت بی برخې کیږي چې چې مظلومان متحد شی اودخپل نصب العین لپاره دمبارزې منظمی لیکی جوړې کړي.

اومبا به یوه ژوره ساه واخیستله اوبیا به فلکا ته مخاطب شو.

مګر زوی جانه تاکوتری لیدلی دی چې سپینې برګی سری او ډول ډول رنګونه لري.

هو پلارجانه ما هر ډول کوترې لیدلي دي مګر تا داهم لیدلي دي چې هره کوتره ځانته دالوتلو خاص انداز لري دخوراک اندازيي بیل وي.

نه پلار جانه. کوتری کوتری دی او دالوت انداز یې هم یوشان دی.

نوبچیه انسانان هم ټول یو شی دی. یو ډول اړتیاوی لري لکه څنګه چې کوترې درنګ له مخې نه شو سره جلا کولاي همدارنګه انسانان هم دپوستکې او نژاد له مخې نه شو سره ویشلای انسان بس انسان دی په هر توکم په هررنګ اوپه هر نژاد پورې چې اړه ولري بس انسان دي.

څوک چې اوس دخپل نژاد دلوړتابه دعوه کوی هغوی تراوسه پورې دخپلې ادعا لپاره هیڅ ډول بنسټ نه دی پیداکړي او داسی بی بنسټه ادعا ته هم کولای شی ته هم داویلای شی چې تور پوستی نژاد دنړې ترټولو بافضیلته نژاد دی خو داسې ادعاګانی صرف او صرف دانسانیت دویش سبب کیږي داسی ادعاګانی صرف او صرف دانسانانو ترمنیځ نفرتونه زیاتوی دکرکو لمن پراخوي اودانسانی مینی لمن ورټولوي.

اومبا دفلکا په معصوم ذهن کې دنژادی توپیر ضد خبري ځایولی
ترڅو زوی یې په راتلونکی ژوندانه کې د یوښه لنسان په څېر
دانسانیت مینې ته په خپل زړه کې ځای ورکړی.

څلور کاله په همدې ترتیب تیر شول. د تولو دښار دخلکو ژوند ورځ
په ورځ له بیلابیلو ستونزو او مشکلاتو سره مخامخ کیدلو.

متل دی چې په تنگ آمد به جنگ آمد.

د تولو خلکو یوځل بیا دسپین پوستو دظلمونو پر خلاف د احتجاج
لپاره خپلې لیکې منظمې کړې.

ورو ورو دمظاهرو ، جلسو او غونډو ساحه پراخه شوه. هلته جگړن
ډرابن دمظاهرو او احتجاجی جلسو پر خلاف سخت احکام او اوامر
صادرول. وهل ټکول پر مظاهره چیانو باندې ډزې داوښکې بهوونکی
گاز استعمال او هر راز ظالمانه تکتیکونه دمظاهره چیانو پر خلاف تر
اجراء لاندې ونیول شول خو مظاهرې نورې هم پسې گړندۍ شوې په
داسې حالاتو کې خو تر هرڅه مخکې لیډر تر عتاب او عذاب لاندې
راځي.

اومبا یوځل بیا ونیول شو او دجگړن ډرابن د محاکمې په وړاندې
ودرول شو.

جگړن ډرابن په غضب لړلې لهجه اومبا مخاطب کړ!
تاسو ته څه تکلیف دی ؟
اومبا : تاسو ښه پوهېږئ چې موږ ته څه تکلیف راپیښ دی .

جګړن ډرابن: بلې بلې. موږ ښه پوهېږو خو دا واوره چې موږ تاسو په حکومت کې نه شو ګډولای پر دولتي پستونو باندې تاسو ته کار نه شو درکولای او نه خو په انتخاباتو کې د رای اچولو چانس درکولای شو.

موږ تاسو ته د دې وطن دلومړۍ درجې اتباعو حق نه شو درکولای او تاسو هم په دې ښه پوهېږۍ.

اومبا: مګر څه له؟

جګړن ډرابن: ځکه چې تاسو تور پوستکي د دې وظایفو داجراء لیاقت نه لرئ.

اومبا: دا فیصله چا کړې ده چې موږ لیاقت نه لرو او په کوم بنیاد او بنسټ یې کړې ده؟

جګړن ډرابن. دا فیصله موږ کړې ده په داسې حال کې چې په خپل کیڼ لاس یې سینه ټکوله ویل یې دا فیصله ما کړې ده:

پر جنوبي افریقا باندې زموږ حکومت دی د دې ملک د راتلونکي وخت فیصله موږ کوو موږ سرنوشت ټاکوونکي یو.

اومبا! د داسې ظالمانه انساني او بشري ضد فیصلو اختیار تاسو ته چا درکړې دي داومبا لهجه ډېره منطقي نرمه او روانه وه دهغه زړه مطمئن وو جګړن ډرابن خپلې مخې ته پر میز پروت ټوپک پورته کړ لاس یې په ماشه کېښود او بیا یې اومبا مخاطب کړ.

ستا دژوندانه فیصله صرف همدا یوه ګولۍ کولای شي.

اومبا په خپلو لاسونو کې بند اولچکونه وښورول او جګړن یې ځانته

متوجه کړ:

مګر جګړن صاحب ته څه خبر یی زه ژوندی یم. نه. نه.

جګړې صاحب زه ژوندی نه یم. پردی سړ کونو، واټونو او میدانونو چې زما دوطن خلک ستاسو په ګولۍ ویشتل کیږی له هرقتل سره یی زما روح هم قتلیږی زما روح تر اوسه پورې تر زرو ځلو زیات ستاسو په ګولیو ویشتل شوی دی زه دومره وژل شوی یم چې اوس دژوند او مرګ ترمینځ بیلتون نشم کولای.

جګړن صاحب. کوم خلک چې په واټونو کې په دومره بی رحمۍ سره وژل کیږی مګر هغوی ته دژوند کولو حق نشته ستاسو ظلمونو داخلک مجبوره کړي دي چې دژوندانه پر عذابونو باندې مرګ ته غوره توب ورکړی.

اومبا دڅه وخت لپاره چوپ ودریدو دهغه له سترګو څخه داوښکو څورونه څاڅکی پر تورو باڼوګانو باندې راورغښتل داومبا غمجن ګرېوان ته ور توی شول دجګړن دکار پر دفتر باندې یو غمجن سکوت حاکم وو او هغه یوځل بیا خبرې شروع کړې.

جګړن صاحب داخلک چې په واټونو باندی په دومره بی رحمی سره وژل کیږی دا صرف له دباندې خوا څخه تور دی که دهغوی پوستکی واړول شی نو ثابته به شی چې له سپین پوستو څخه یی هیڅ توپیر نشته.

جګړن ډرابن: زه دامنطق نه منم، انسانان چې په مختلفو رنګو سره تخلیق شوي دي په دې کې به دطبعیت کوم راز نغښتی وي.

په رنګونو سره دانسانانو درجې او مرتبې تاکل شوي دي، له همدې امله سپین پوستکی انسانان فضیلت لري دحکومت کولو حق صرف او صرف ومونږ ته حاصل دي.

اومبا : نه جګړن صاحب نه داسې نه ده داهرڅه ستاسو دخپل ذهن اختراعات دي دا اختراعات هیڅ بنیاد نه لري.

پر مونږ باندې دحکومت کولو سند خدای پاک تاسې ته نه دي در کړي داحق تاسو ته هغه توپک درکړی دی چې سبا زمونږ لاس ته هم راتلای شي خوزه تاسو ته داډ درکوم کله چې دا توپک زمونږ لاس ته راشي نو مونږ به دانسانانو دقبر پر ځای توپکونو ته قبرونه جوړ کړو مونږ به توپکونه ښخ کړو نه دتوپکونو په زور انسانان.

داومبا ددې وینا په اورېدو دجګړن ډرابن څېرې تغیر وخوړ جګړن دنور بحث دکولو پرځای داومبا اودهغه دملګرو دمرګ حکم ولیکلو.

سبا ته په ښار کې داخبر په ډېر ګړندیتوب سره دهرچا غوږونو ته ورسید چې جګړن ډرابن دزړه دیوی سختې حملې په وجه دمرګ وپولې ته رسیدلی دی او دجوړیدو امکان یې نشه.

دښار اوسیدونکو ته دوهم خبر په دې شکل ورسید چې جګړن ډرابن تر ناروغ کېدو لږ مخکې داومبا دمرګ پر حکم باندې لاس لیک کړی دي.

تور پستکی وګړی چې په دې دوهم خبر باندی خبر شول سمدلاسه یې دښار مرکزی محبس محاصره کړ تر لږ مقاومت وروسته یې زندان

مات کړ خو په همدې وخت کې د ښار امنيتي قوتونو ته پوځي کمک راغي.

پوځ مظاهرين تر محاصرې لاندې ونيول و مظاهره چيانو لپاره بله چاره نه وه له پوځ سره لاس په لاس جگړه پيل شوه.

مرمۍ واورېدې د هر خلک په وينو کې ورغړېدل، د زخميانو په ډله کې او مباهم روغتون ته ورسول شو. او مبا د زخمونو تاب رانه وړ په ميړانه سره د خپلو خلکو تر لوی مقدس او ابدی آرمان قربان شو.

کوم مظاهره چيان چې د پوځيانو له گوليو څخه ژوندي پاتې شوی وو زندان ته ولېږدول شول.

د «تولو» پر ښار باندې مرگونی سکوت حاکم شو. ټول سړکونه، ټولې کوڅې او ټول واټونه د يوه مرگونی سکوت په غېږ کې پراته وو. ټول ښار د ډېرو ژړاگانو په وجه غمجنو سلگيو پرسر اخيستی وو. داومبا مرگ د ډېرو تور پوستو له سترگو څخه د اوښکو باران اوروللی وو.

د فلکا د سترگو کسی د خپل لوی او مبارز پلار په مرگ باندې د سکروټو په څېر تک سره شوی وو.

د کسابو غم جنو سلگو هم تمام ته درلود.

هلته د جگړن ډرابن زره د حملې له شدت څخه بيخې ناکاره شوی وو خو ډاکټرانو په مناسب وخت کې د کاميابو عملياتو په ترڅ کې د جگړن ډرابن زړه تبديل کړ د ډرابن عمليات کاميابه شول جگړن د ناروغۍ له بستر څخه راپورته شوی وو او د روغتون په سالون کې يې قدمونه وهل.

جګړن به اکثره وخت د روغتون د کوټې له کړکۍ څخه په ښار کې دامن او امان حالت غوره کتلو او په مسکۍ څېره به یې پر ښار باندې حاکم سکوت ته متوجه کیدلو.

یوه ورځ جګړن خپل معالج ډاکټر ته وویل:

مګر زما په سینه کې تپیدونکی زړه د یوه مهربانه او خواخوږي انسان له سینې څخه راختلی او بیا زما په سینه کې پیوند شوی دی؟

دجګړن معالج بې له سریزې ځواب ورکړ.

- داومبا زړه موستا په سینه کې پیوند کړ

دډرابن لپاره داخبر له یوې چاودنې نه کم نه وو.

معالج خپلو خبرو ته دوام ورکړ.

بلې هو. صرف داومبا زړه له طبي لحاظه ستاسو لپاره ښه او صحت مند زړه وو. داومبا پر دماغ باندې ګولۍ لګېدلې وه زړه یې بالکل روغ وو موږ فوراً ستاسو په سینه کې پیوند کړ.

جګړن په زېږه او شرمیدلې لهجه له معالج څخه پوښتنه وکړه:

مګر د دې کار لپاره خو داومبا له وارثانو څخه اجازه شرط وه تاسو اجازه واخیستله.

معالج: که څه هم اومبا په خپل ژوند کې دخپلو جسماني غړو هدیه اعلان کړی وه زموږ د روغتون د معلوماتو له مخې اومبا د دغې هدیې لپاره د تور پوستي او سپین پوستي انسان د تخصیص شرط بیخي له مینځه ایستلی وو. دجسماني اعضاو دهدیې په لیست کې دهغه زړه هم

شامل وو خو مور بیا هم داومبا له زوی فلکا څخه د اجازت نامې پر فارم

باندې دستخط واخیست.

جګړن درابن بیا پوښتنه وکړه:

نو فلکا په خپله خوښه لاس لیک وکړ؟

هو فلکا په خپله خوښه لاس لیک وکړ دداسې کارونو لپاره زور نه

چلیږي. فلکا یو پوه هلک دي هغه تر لاس لیک له مخه وویل چې له

کمزورو او بې وسو خلکو څخه دژوند متاع اخیستل غیرت او ځوانمردی

نه ده.

جګړن درابن اوس د مرګ پر بستر پروت دی او هغه اوس تر مور ډېر

کمزوری دی او زه د اومبا زوی یم. اومبا ډېر غیرت مند او لوړ انسان وو.

دهغه دلوړتیا تر ټولو غوره دلیل دادی چې همیشه یې د رټلو

انسانانو په ننګ باندې دمبارزې سنګر تود ساتلی وو.

ددې خبرو په جریان کې دروغتون مخ ته دماشومانو دمظاهرې

نارې واوریدل شوې.

په همدې حال کې یو پوځي تورن د جګړن درابن کوټې ته ننوت او له

پوځی تعظیم څخه وروسته یې وویل:

مور افسوس کوو چې ستاسو په آرامی کې اخلال پیښ شو-

روغتون څخه د باندې هغه ماشومان دمظاهرې په شکل راغلی دي.

د کومو پلرونو چې په تېرو عملیاتو کې زمور په ګولیو ووژل شول

خو جګړن صاحب داماشومان ددې نه دي چې په کوټکونو وهل شي او

یاهم اوښکی بهوونکی ګاز پرې استعمال شي.

جګړن د لاس په اشاره تورن له خبرو منع کړ په سترګو کې یې د ندامت او خجالت عجیبه شان ډر او وهم سره را ټول شو.

جګړن کوشش وکړ چې خپل احساسات کنترول کړي.

تورن ته یې حکم وکړ چې ماشومان مه په تکلیفوئ. ماشومان پریږدی چې خپله خبره وکړی.

ورو ورو د مظاهرینو ازدحام زیات شو جګړن د کوټې له کړکۍ څخه د روغتون انګړ ته وکتل.

دانګړ په مینځ کې ماشومان په ډېر عالی نظم او ډسپلین سره یو ځای کیدلو کله چې مظاهرین ټول سره راغونډ شو نو فلکا پر یو لوړ ځای ودریدلو مخاطب ماشومان یې خاموشی ته دعوت کړل.

فلکا وینا پیل کړه: ملګرو مورو نن د خپلو سترو پلرونو مبارزو ته د تل لپاره په خپلو زړونو کې ځای ورکوو او دا ژمنه کوو چې د هغوی سترې مبارزې به کله هم بې نتیجې پرې نه ږدو سپین پوستی قاتلان په دې ګمان دی چې زموږ د پلرونو د مرګ په قیمت یې په ښار کې سوله ټینګه کړې ده خو دا آرامی تر طوفان له مخې دیوه ډارن سکوت غمازی کوی. دا سوله نه ده او دا کراری دایمی نه ده. زموږ جنګ نه دی ختم شوی زموږ جګړه همدا اوس پیل کیږی، موږ به نړۍ ته وښیو چې غیرت زړه ورتوب او باتوری وڅه ته وایی که څینې خلک د بې دفاع انسانانو عام قتل ته غیرت او ځوانمردي وایی نو بې غیرتی جبن او ډار بیا وڅه ته

وایی؟

مور دهغو ورځو انتظار کوو چې زمور متو ته قوت راشي بیا به مور قاتلانو ته وښیو چې غیرت باتوری او زړه ور توب څه شی دی.

فلکا په خورا مشتعلو احساساتو وینا اوروله دهغه څنګ ته کسانو هغه لور پورته کړ چې ددښمن د پوځ څارویو ته یی واښه پی ریبل او په لوړ آواز یی وویل:

زه نور ستاسو څناورانو ته واښه نه ریبم.

جګړن دراښ په حیرانتیا سره فلکا ته کتل هغه فکر کاوه چې اومبا دفلکا په شکل کې بیر ته ژوندی شوي دي خو ژر یی سر وښوراوه.

اومبا خونه دی مړ. جګړن له ځان سره خبری کولې.

نه نه اومبا مړ نه دی اومبا چیر ته مړدي.

جګړن داومبا په مرګ باندې یقین نه کاوه په غیر ارادی ډول یی دډراښ پر مرګ باندې وخندل.

کوټه

دلړم ۱۲ مه ۱۳۷۷

# ځېره را واستوئ خیر یوسئ

ممکن چې اصلي نوم به یې صاحبه وه مور اوس سابو تورې ورته ویله سابو تورې به همیشه خپلې سپینې کمڅې اوپیچې «پیچکی» په سرونکریزو باندې رنګولې له همدې امله به کله کله په سور سرې بوډۍ باندې هم یادیدله. لوړه دنګه ونه یې وه سلیما نخیلی «کپی» به یې په شنو مریو باندې ښکلې کړې وې لوی ګېډۍ کمیس به یې اغوستی وو د ګیټهسو په څېر جوړې دآلچې برګې پایڅې به یې په نریو لینګو پورې ټینګې نښتې وې.

د تور پوړونې په کینه پیښکه پوري به یې توره ګوړه غوټه وه له همدې امله به د هغې پوړونې همیشه زما د توجه وړ وو.

مور چې ماشومان وو نو ما څو ځله ددې له تور ټکرې څخه په غلا ګوړه خلاصه کړې وه. اوچې کله زه ځلمی شوم نو هم به مې د سابو تورې د تور ټکرې پیښکه د ماشومتوب د دوران په سترګو کتله.

په سابو توري د طالب دا چيغه چې ځيره راوړي خير يوسي خوراښه لګېدله.

کله به چې طالب د دروازې په مخ کې چيغه کړه چې ځيره راوړي خير يوسي نو د سابو توري د تندي ګونځې به سره خلاصې شوی. په ځېره کې به يی درنها عجيبې کرښې سره وغځيدلي د تور پوړونی د مخ لويه تابه يی په ځټ ووهله او په چټکو قدمونو به د دسترخوان خوا ته ولاړه يوه غټه چمبه کښنه ډوډی به يی د طالب په ځولۍ کې ور واچوله.

له ډېري مودې راهيسې د سابو توري ايکی يو زوی طالب وو مور نه وو ليدلی خو سابو توري به ورته ملا باران جان ويل.

هر وخت چې به يی څه د خدای په نامه ورکول نو حتماً به يی دا خبره ورسره کوله د باران جان د سر صدقه دی شي.

که به يې د چا ښايسته سترګې وليدې نو سمدستی به يې مچ کړی او ويل به يی چې: سترګې دی داسې ښايسته دی لکه زما د باران خان.

سابو توري به هر ښايست هره ښکلا او هره ښه ځوانی د باران جان له سترګو سره مقايسه کوله.

کله چې مور ملا باران اخند وليدلو نو د سابو توري خبره رښتيا وه، د ملا باران هم لوړه ونه وه توری اوږدې ځنې يی په ځټ کې پرې کړی وي. غټې بوری سترګی ګڼه اوږده ږيره د مخ پراخه ځېره لوړه پوزه غښتلی پښتنانه اندامونه او په خبرو کې د روند اخلاقی متانت دی ټولو ښکلاګانو د ملاباران اخند په هکله د سابو توري د صفتونو تصديق کاوه.

نن چې زه د خپل کلي کوڅو ته ور غلم نو پوره لس کاله تیر شوي وو
خلکو ویل چې سابو لیونی شوی ده.

د کلي ماشومان سات تیرئ پې کوي.

ماچې سابو ولیدله له سپینو ویښتانو څخه یې د نکریزو سره رنګ
کېده کړی وه تور ګیډۍ کمیس یې ریښکی ریښکی شوی وو.

سترګی یې د مخ په کاسه کې ننوتی وې په نه څه به یې په کړس کړس
وخندل او په نه څه به یې په سلګو سلګو کې وژړل.

زه د سابو توري لیونتوب ته فکر وړی وم چې په کوڅه کې څو تنه
ماشومان راڅرګند شول یوه ماشوم چیغه کړه ځیره راوړئ خیر یوسي.

سابو توری ژر د کمیس د مخ له تن څخه یوه ټوټه وشکوله او ماشوم ته یې
ورکړه واخله داستا ځیره او بیا یې په کړس کړس وخندل.

او یو بل شوخ ماشوم د کوڅې له بله سره چیغه کړه ځیره راوړي خیر
یوسي او سابو توري د کوڅې ها غه بل سرته ورمنډه کړه ماشوم ته یې له
خپله کمیسه څخه یوه بله ریښکی ورکړه.

په همدې حالت کې د کلي یو هوښیار ماشوم زما خواته رانږدې شو
پټ یې راته وویل:

کاکا. ددې ښځې زوی ملا باران اخند د میدان په جنګ کې د توپ په
ګولیو ویشتل شوی وو چې کلي ته یې جنازه راغله نو خلکو یې په مړینې
باندې د زوی مخ ورښکاره نه کړ ځکه چې ډېر زخمونه یې وو اوس سابو
توري لیونی شوی ده ددې زوی هم طالب وو. طالبانو ته به یې ځیرې

ټولولې اوس چې څوک ناره کړي چې ځیره راوړي خیر یوسي نو خپل زوی ملا باران اخندور په یاد پړي.

راځه کاکا وبال لري. راځه کاکا وبال لري.

کلات

دجوزا ۱۲-۱۳۷۶

# شنې روپۍ او سپينې پګړۍ

- په منطقه کې د سليمانخيلو يوازې يو کلی آباد وو او دغه کلی هم دچا بد نظر وخوړلو په کلي کې ناڅاپه د يوه بل جومات د جوړېدو کار پيل شو دغه کلي پر يوه واړه او واړې کاريز بانډې آباد وو کوم کال چې به واوره و اورېده نود کلي کاريز به ښه وو خو کوم کال چې به واوره نه وه نود کلي د کروندو به خوند نه وو دغلو دانو د کموالي په وجه به د ملا صاحبانو زکات لږ وو او پر دغو لږو غلو دانو باندې هم د ملايانو سره جنګ وو چې دغه جنګ آخر کلي پر دوه ډلو باندې وويشلو.

د کلي اصلي نوم ګودر کلاوه ګودر د قبيلې د يوه سپين ږيري نوم وو چې په کلکته کې د يوې هندوانې رقاصې په مينه کې د هغې نورو يارانو په چړو مړ کړ خو کلي ته اوازه راغله چې غلو شهيد کړ.

کله چې په کلي کې د ملايانو په يوه جومات ګوزاره ګرانه شوه نو کلي پر دوو ډلو وويشل شو.

يوه ډله په زاړه جومات کې پاتې شوه او بلې ډلې ځانته د جومات

جوړولو ته بدي راونغاړلي.

دملايانو اختلافات هره ورځ پسې زياتيدل او نوی نوی اړخونه يی پيدا كول. دهرجومات ملا به دبل جومات ملاصاحب موقف او موقعيت په خپلو خطبو وعظونو او نصيحتونو کې تر بريد لاندې کړی وو په زاړه جومات کې دګودر سود خواره ورونه وريرونه ، تربرونه او زامن پاتی شول.

دوی خورا ښه کارو باريان او ماهر سود خوړونکی وو له شپيتو كلوراهيسې يی کورنۍ په کلکته کې دسود دمعاملې تجربه درلوده.

خو په نوی جومات کې بياد حاجي خړ اکا خيل خانه سره راټوله شود چې په هندوستان کې يی کارو بار نه درلود اما دمنطقې په شا او خوا وړو وړو كليو کې ی دصندوف ټوکران دټکياليو، جوليو او چکنونو پوړونی اودپښو زرتاری کپۍ او څه نور شيان دکال په پور په لوړه بيه خرڅول دنوی جومات دملاصاحب دمقتديانو خراب اقتصادی حالت دملاصاحب دتش جيب له درده دجوړې شوې عقدې په پاړسوب کې زيات رول درلود.

دنوی جومات دملاصاحب پر خلاف دزاړه جومات دملا صاحب جيب بيا بيخی ډک وو.

داغوستلو جامی يی تکی سپينی وی پايزار به يی نوی وو او ږيره به يی هم دچرګی دهګيو په ژړو باندی پريمنځله چې په يو ډول خاصو هندوستانی تيلو به يی غوړه کړه نو ويښتان به يی ور سره وځليدل.

دپورته او تیټ دغه حالت او دعوایدو دغی نا انډولـه فضا ذملاصاحبانو ترمینځ ددښمنی کتیوه نوره هم و خوټوله دزاړه جومات ملاصاحب چې دحاجی چټ دکورنی ملا وو همیشه به یی دخپلو وعظونو او خطبو په ترڅ کې دمقتدیانو له سخاوت ، ځوانمردی ، جوادی او سیالداری څخه خبری کولې کله چې به دچټ دکورنی دګټمنو پردیسانو خط له کلکتی څخه راتللو نو ملاصاحب به دمازدیګر له جماعت څخه وروسته په جومات کې حاضرو کلیوالو ته لوستلو.

که څه هم په جومات کې هیڅوک په فارسی ژبه نه پوهیدلو خو خط به په هماغه جوماتی املا کې په فارسی ژبه لیکل شوی وو چې لیکونکی یی په جومات کې له ملاصاحب څخه زده کړی وو.

مثلاً خط به څه داسی و.

دوعا وسلام بخیریت انجام بصد شوق تمام مثل ریګ بیابان، برګ درختان ، ستاره های آسمان وموی دلبران برسد به ملاصاحب مسجد حاجی چټ لالا ، ولونګ ماما وبدرئ اکا وغونډر اکا وګیولټ ماما ودیګران که از قید قلم مانده باشد .

کله چې به ملاصاحب خط لوستلو نو دجومات ټول مقتدیان به غوږ غوږ وو دمابنام له جماعت څخه وروسته به چې کله عادی دوعا خلاصه شوه نو ملاصحب به په لوړ آواز وویل:

دوعای حاجت په حق کې دپردیسانو او مسافرانو: ددغو دوعاګانو په بدل کې به دکلکتی پردیسانو هم ملاصاحب نه هیراوه دوی به هر کال

له كلكتې څخه د ملا صاحب د مېرمنې مورا اګې لپاره وريښمينه تكيالې د سره صندف كميس د آلچې ليكې ليكې پايڅې او يخې پخې د زرتارو كپې راليږلې.

داشيان خوبه د سرو لاسونو د ناوكيانو دودونو په پوښ كې هم نه وو خو چې د مورا اګې بخت بيدار وو نو بيا خو خدا داده راسيالی نيست.

مورا اګې چې به په هر واده او ښادۍ كې تكيائې پر سر كوله نو ملا صاحب به تر خپلو خريلو بريتو لاندې پټ پټ ورته خندل.

پر تكيالېو، كپېو الچو او صندوف برسېره به پرديسانو ملا صاحب ته هم د سپين وبره بوسكې لنګوټه اوله هندوستانې وړيو جوړ ګرم څادر راليږه.

ملا صاحب به هم د پرديسانو د احسانونو په بدل كې هغوی ته غوړې غوړې دوعاګانې كولې او د دوی د ايمان د سلامتيا خوبونه به يې هم ليدل چې سهار به يې د كلي سپين ږيرو ته بيانول البته د خوبونو تعبير به هم ده پخپله كولو . ملا صاحب به د خپل نصيحت په ترڅ كې فرمايلو چې:

خلاصه دا د جنت دروازه د هغه چا پر مخ چې ويې كړه سخا او ويې كړ خدمت د علماء كرامو او وارثينو د دين په تحقيق سره علماء شمع د دين دی او وارثين دي د خير البشر (ص).

كه څوك په خلاص مټ او پاك زړه خدمت وكړي د علماوو نو سر به يې لوړ شي هم په دې جهان او هم په هغه جهان كې . ملا صاحب به د نوی جومات امام هم د خپل وعظ بريد ته برابراوه د غه بريد به كله نيغ په نيغه

وو او کله به بیا دخاصو کنایو او تلمیحاتو په بڼه کې وو.

مثلاً کله چې به یې دنوی جومات امام په نیښن وهلو نو ویل به یې:

هغه عالمان د دوزخ له اور ه نه خلاصیږي چې حکم کوی پر مسلمان باندې د کافر او ښکنځي سخیان دخپل سخاوت په وجه راغلی دی په کتابونو کې چې په مسلمانانو پسی سپکې سپورې ویل گناه ده او د مسلمان غیبت کول داسی دی لکه دبل مسلمان غوښې خوړل.

داکومی آنې بانې چې علماء سوء کوی نو دوی ته دا خبره نه ده معلومه چې روا ده معامله دسود په هغه دار کې چې هغه دا روی دارالکفر او هلته نه ویل کیږی کلمه محمدی که څوک شک لری نو رامخ ته دی شي چې زه مسله ور کړم،.

چټ او تپاتپک چې هم حاجیان وو او هم دنوی جومات سپین ږیری د ملاصاحب دوعظ دجوش په حالت کې به په رینگی شول او په جومات کې به یې نوږو خلکو ته دا تاثر ورکاوه چې گویا د ملاصاحب نصیحت د دوی په وجود کې سو ځونکی سرایت کړی دي.

خو د زاړه جومات د ملا پر خلاف دنوی جومات ملاصاحب به بیا سود خورو ته سوږران او خنځیران ویل ځکه چې دده په مقتدیانو کې لا چا په هندوستان کې معامله نه درلوده.

دنوی جومات ملا به دخپل وعظ په ترخ کې ویل چې واوري مسلمانانو وروڼو.

سود له خدای سره جنگ دي محاربه ده له خدای پاک سره جنگ دی

له رسول سره اوله دین سره راغلی دی په کتابونو کې دا روایتونه چې دسود خورو سرونه دسر کوزو دي مخونه یې دسپو دي له دوی سره ناسته پاسته ناروا ده مطلقه ناروا ده .

طلاقه ده پر هغه چا عورته خپله چې ویې کړ نزدیکت له سود خورو سره او ویې خوړه مړی پر دسترخوان باندی دد غو خپیشانو او خنځیرانو او سوډرانو. دسود یوه پیسه دومره لویه ګناه لری لکه سړی چې زر واره په حرم کې زنا وکړي یادخپلی ماینې دحیض وینه وخوري کوم علماء فاسق چې نه وربښیی مسلمانانو ته دسود زیانونو دهغوی مخونه به داسې تک تور وي په هغه جهان کې لکه تکه توره تبې.

خړ اکا او ګړنګ ماما چې دنوی جومات سپین ږیری وو اوله چټ دوی سره یې پخه سیالي او تربورګلوی درلوده دملاصاحب دوعظ داوج په وخت کې به یې په جذباتی رینګي سره وژړل او دجومات نورو خلکوته به یې داسې وربښودله چې ګویا دآخرت له ویری یې زړه چوی اودملاصاحب نصیحت ددوی زړونه داسې نرموی لکه موم.

خوپه اصل کې به دوی دواړو دخپلو سیالانو او رقیبانو په ترټهنه باندی من من غوښه اخیسته او دخپلې ژړا په حالت کې به یې ملاصاحب پر غوړ وهلو چې نیښن دی نور هم له زهرو ډک کړه.

دخدای شپې او ورځې دي دخړ اکا او ګړنګ ماما زمنو هم دمدراس په یوه ښار کې دسود معامله له نورو سلیمان خیلو څخه په قسطونو باندې واخیستله.

معامله وروورو وغوړېده او دروپو بهیر هم ور سره چټک شو دګودر کلا دنوی جومات خلکو ته به له مدراس څخه دنقدو چغدو روپو حوالې راتلې چې دغو حوالو دجومات هوا یودم بدله کړه.

دمعمول پر خلاف به دنوی جومات ملاصاحب دسخاوت او جوادی په هکله په خپل نصیحت کې دکتابونو نوی روایتونه بیانول دسخا دفیض اوبرکت په باره کې به یې خبرې کولې.

دنوی جومات ملاصاحب به تر عادی دوعا وروسته لاس پورته کاوه او چیغه به یې وهله.

«دوعای حاجت په حق کې دپردیسانو او مساپرینو دمدراس»

دمدراس مساپرو به هم دکلکتې له مساپرو سره په رقابت کې دخپل جومات دملاصاحب لپاره وړین څادر دسپین وبره بوسکی اعلی درجه لنګوټه او یخی پنخې دزرتارو کپې راالیږلې چې دمورا اګی لپاره به دګلداره صندوف کمیس او دوریښمین چکن ټوکرئ هم ور سره ملګرئ وو.

کله چې دنوی جومات دملاصاحب ذعوایدو اندزه هم دزاړه جومات دملاصاحب دعوایدو تر اندازې پورې ور ورسېده نو ورو ورو ددواړو جوماتونو دملایانو روابط نازمل حالت ته راکوز شول.

اوس به په دواړو جوماتونو کې دوعظ خبره داوه چې زکات ډېر ثواب لری او هم صدقه فطر ادا کول لوی ثواب لري.

دروژې داختر له رارسیدو سره سم دکلی جرګه مارو سپین ږیرو

د مصالحت لپاره حالت مساعد وليد له لږ څه هڅو وروسته ملايان راضي شول چې د اختر لمونځ به يو ځای ادا کوي د ګودر کلا په لوی ميدان کې داختر لمونځ په اتفاق سره ادا شو.

دواړه ملايان يو د بل ترڅنګ کښيناستل د واړو د سخاوت لوړې درجې بيان کړې.

د دواړو پر سر باندی د هندوستانی سپين وبره بوسکی پګړی ول ول پرتې وې.

په کلی کې د ډېرو خلکو يو بل ته په پس پسکی سره وويل دا اتفاق د ملايانو خپل اتفاق نه دی جار د هندوستان ترشنو روپو او سپينو لنګوټو چې له غضبه يې خلاص کړو.

# کله چې پوړونی باد یوسي

مور جانې! زه به یې جارو کړم ته راکړه جارو.

ماګلی زما د مور له لاسه جارو کش کړ. هغې چې د کوټې پر تغر اول جارو راتیراوه نو زما د بوټو خړپی شو او چې زما د بوټو خړپی شو هغې بیا ژر د پوړونی د سرتا پر مخ راواړوله او په یوه منډه له کوټې ووته. زما مور په خندا شوه، ما ته یې وکتل او بیا یې په خندا خندا کښې راته وویل: خانکه زویه! دا نجلۍ دې وپیژنده. ماګله د ماګله هغه ماګله چې صفت یې په ټول کلي کښې کیږي د کرم داد لور د مولا داد وریره او د جومداد خور.

ها - خنځیره څرنګه دې په بریتو کښې وخندل زړه دې غواړي چې ستا وای خو... دا دې د خو لفظ په خوله کښې وچ پاتې شو سره نګړه کښیناسته بنه ساعت چوپ وه او بیا یې سر په دواړو لاسو ټینګ ونیو چې دوه درې څاڅکي اوښکې یې له سترګو راوڅڅېدې په ژړغونې آواز یې وویل: چې پلار دې ژوندی وای نو اوس خو به یې زما دارمانونو چاره

کړې وای هغه خودمرکو سړی و. سیالداره و.

اوس خو به کرم داد پر کور ستن اودستمال ورته راوړی وای پلار به دې ویل چې دخانک په ښادی کښې به دزړه تولې غوتې خلاصوم د تربور سترګې به داسې ورسوځم چې بیا یې ونه ځنبوی خو پلار دې هم له ځان سره ارمانونه ګور ته یوړل دخدای قربان شم پر هر حال یې شکر دی چې له کفره. دادې اوښکې بیا را وڅڅېدې ستونی یې راډک شو.

ماتردې ژړا له مخه یو ځل پخواهم دادې ژړا لیدلې وه کله چې پر بابا مې ملاصاحب یاسین شریف وایه، نو ادې مې ژړل، اوبیا چې دکلي خلکو زما بابا په چار پایي کښې جومات ته یووړ نو ادې خپل ویښتان شکول سریې له دیواله څخه وهلو او چیغو یې تول کور پر سر اخیستی و.

اخ زما پوروني خویاد یووړ زه خو سر توې شوم های – وای اخ وای د ماګلی مور زما ادې تر مټ ونیوله او ژر یې دکوتې دهلیز ته ور دننه کړه. زه او ماګله دواړه دسرای په مینځ کښې پاتې شوو.

دکلي ښځې جوپه جوپه زمونږ کورته را رواني وې او زما ادې ته یې ډاډینه ور کوله.

– خورې دخدای بې امري مه کوه مونږ تول خدای پاک ته ورځو که دی اوس دا زوی نه وای نوڅه به دې کول خو میراث خورو به دې دخاوند پر پتاری لا لوښې اولرګي درویشلي وای مه ژاړه دوعا ورته کوه په ژړا هغه ته هیڅ هم نه ور رسیږی پر هر حال یې شکر دې چې له کفره.

په هغه ورځ زه او ماګله بې غمه اوبې جمه وو دامو نه ویل چې دنیا

دچاپېر ښکرو ولاړه ده. بس موږ په خپلو لوبو کښې مصروف وو. ماګلې له ما څخه دلوبو په مینځ کښې عجیبې عجیبې پوښتنې کولې:

خانکه ته وایه چې باد ولې له سرونو پوړونې وړي زما له سر څخه خو به یې نه وړي؟

ما په ځواب کښې ورته وویل اوس خو باد نشته که باد شو نو پوړونې دې پر سر ټینګ کړه.

ماګلې بیا له ما پوښتنه وکړه: نوستا دادې پر سر خو پوړونې باد نه دی وړی دا ژاړي ولې؟

له ما سره دپوښتنې جواب نه و. زه بیرته په لوبو مشغول شوم دختو پر کوټنې مې لاس ونیو او ماګلې ته مې وویل:

بادونه چې پړونې وړي نو دا کوټنې ښه مضبوطه کړه هسې نه چې کوټنې را پشخه یوسې. ماګلې له ماسره څو کاله دختو کوټنې جوړې کړې، هغې به ماته ویل چې ته مې ښه ایسې، بازګل مې بد ایسي، بازګل دماګلې دتره زوی و چې له موږ څخه څو کاله مشر و. غټ پنډ وجود یې درلود، خوله به یې له خبرو او خندا پرته وازه نیولې وه.

سترګې یې تر اندازې زیاتې ځیرل شوې وې.

پر کینې بارخو یې دسال دانې یو غټ داغ و. پر بدرنګه او ناوړه قواره بر سیره بازګل دخوی اوبوی له مخې هم دښه ایسیدلو وړ نه و.

جګړه یې په بیه اخیستله، چې له چا سره به یې خبره واوښته نو له جیبه به یې غیران راوکیښ او په قهر جنه لهجه به یې وویل:

دروا خله دادې دجنگ بيانه.

ماچې به له ماګلی پوښتنه وکړه ولې دې زه ښه ايسم او هغه بد؟ نو ماګلی به راته وويل ته خوښه کونتی جوړوې له باد څخه يې ساتې او هغه خو کوتنی ورانوي ښکنځلې کوي سمه يې نه ده زده پر ته له چپې.

او بيا هغه وخ هم راغله چې زمونږ په سرای کښې د کلې نجونو درياوې وهلې. ادې مې له خوشحالی په جامو کښې نه ځائيده متې يې رانغښتې وې او د کلې په نجونو اوښځو يې د دسمال شيريني ويشله.

چې د کلې کومه ښځه به ورتر غاړې وته نو مور به مې ورته وويل خدای دې تاهم داولاد په خوږو مږه کړي. اودخو لفظ به بيا دادې په ستوني کښې وچ ونښتو ادې به مې په آرماني لهجه وويل خو کاشکې د خانک پلار ژوندی وای، د تربورو سترګې به يې داسې ورسوی وای چې بيا به هيڅکله هم نه وی ځنبيدلی.

داځل مې ادې له خو سره نه ژړل، هغه خوشحاله وه ، دخپلې وريرې دسمال يې راوړی و اود خپل زوی ښادي يې په سترګو ليدله.

ما ګله چې ماد کوژدې په ورځ وليدله نو بيا يې د پوړوني دسرتا پرمخ راښکته کړه.

اوښی سترګه چې په پوړوني کښې يې نه وه پټه کړې زما خواته ونيوه. په کتلو کتلو کښې يې زه له خپل غمجن سباوون څخه وپوهولم، ما خوداسې انګيرله چې هغه په کتلو کتلو کښې ماته دجفا پيغور راکوي خو خبره يې نه کوله.

دماګلۍ پلار دماګلۍ دسمال د بازګل دوی کورته ورلیږلی و. کله چې مور له وطن څخه راورک شو نو یوه ورځ ماښام دډېرو دسکرو دکان کار ګران کلي ته راغلل او دیوه لاوارثه مړي په باره کښې یې مور کان ته وروغوښتلو.

بازګل دکان په مینځ کښې دسکرو ګازوژلی و خوله یې ترپخوا زیاتهوازه وه دسترګو تور او سپین یې سره ګډ شوي وو. ټول وجود یې تک تور اوښتی و.

کله چې مور جنازه په کلي کور ور دننه کړه نو ماګلۍ چیغې او نارې پیل کړې. اخ وای! زما له سره خو پوروني باد یووړ. زما دختو کوټنۍ خو باد رنګه کړه.

های وای اخ وای زه خو سر توره شوم.

او ماته دماګلۍ هغه دوړکتوب پوښتنې بیا رایه یاد شوې: خانکه ته ووایه چې باد ولې دچاله سره پوروني وړي زماله سره خو یې نه وړي خانکه ته ووایه؟

خانکه ته ووایه؟

ښرنه

د ۱۳٦۹ کال دوری میاشت

# نوې طبقه

دزین العابدین اخند زاده صاحب ملایی په ټول دیار کې پخه او غوړه ملایی وه.غوړه خویه دې سبب وه چې اخندزاده صاحب داتیر کال څه دپاسه یو ولس خرواره غنم دری خرواره اوریشې پنځه خرواره سنجی خانی کشمش هړتاوی، او دخدای مال په زکات کې راټول کړی وو. ده دخپلې ملایی لپاره دکلی له حاکم او پوه سپین ږیری ملک ګلدین اکا سره خپلې اړیکې دګټو او مفاداتو پر بنسټ باندین بیخی ډیری دوستانه کړې وې.

دکلی مشر حاجی ګل دین اکا اوس شپیته کلن شوی وو ښه چاغ غنډ منډ نس یی درلود له خیټې څخه یی دښه صحت او ښې روغتیا راز له ورایه معلومېده. پراخ او هوار تټر یې دکندهاری ترخزلرونکی کمیس له سپینی خامک شوی غاړې سره خورا ښه ښکاریدلو.

له شناوی، ږیری سره یی سپینو بریتو دمشرتوب وقار نورهم سیوا کړی وو. زښته ډیر دعوه جلبه وو دینی معلومات یی زیات وو کله کله به

يی دخپلو خبرو داستناد لپاره له ايتونو دينی روايا تو او احاديثو څخه هم استفاده کوله.

دمحلی اوسيمه ايزو متلونو لنډو حکايتونو او اولسی روايا تو څخه يی هم پوهه زياته وه پښتولنډۍ به يی هم په خبرو کې دمناسبت له مخې راوړې درحمان بابا داشعر خويی بالکل تکيه کلام ګرزيدلی وو.

چې الله در سره مل نه وی رحمانه
که لښکرې درسره وی يک تنهايی

دمهاجرت په وختوکې يی دکوټې دکچارۍ يو ناحقه شاهد چې په مزدورۍ به يی دخلکو په دعوو کې شاهدی ورکوله انډيوال کړی وو له انډيوال څخه يی د اردو ژبې ځينې شعرونه زده کړی وو له هغی جملی څخه يی داشعر په پښتو ډوله اردو باندی ويلو:

مدعی لاکهه براچاهيی توکياهوتاهی
وهی هوتاهی جومنظور خدا هوتاهی

ملک حاجی ګل دين اکا ته چې له پلاره کومه مځکه ور پاتې وه هغه يی په دې څو کالونو کې لس چنده نوره زياته کړې وه په کوټه کې يې دچرسو کار اوبار ته لاس ور اچولی وو. دچرسو پر دنده برسيره يی په کمپ کې دوه سوه اظافی راشن کارتونه جوړ کړی وو. پر ايرانيانو باندی يی ګډوډ ترياک داصلی ترياکو په بيه پلورلو دغه ټولې روپۍ چې ګويا توری پيسې وې په ځمکه باندی سپينی کړې ډېره ځمکه يی پې رانيوله دانګورو او انارو پر حاصلو سپاره باغونه يی رانيول.

په دې وختو کې چې په ښار کې طالبان حاکمان وو نو ملک صاحب دزین العابدین اخند زاده صاحب له پرستیژ څخه ښه استفاده کړې وه او دسرکار املاک یې هم دخپل جایداد حصه گرزولی وو.

ملک صاحب دحقو او ناحقو دعوو دگټلو خوراشین تماکور وو په قسمونو طلاقونو، قرانونو او نورو لوړو یې باک نه کېده غیر حق قرآنونه به یې خوړل خپلې قوارې ته به یې ډیر حق په جانب رنگ ورکولو کله چې به په دعوه کې گټمن شونو دفارسي داکلام به یې په پښتو لړلی لهجه اورولو.

این سعادت بزور بازو نیست

تا نه بخشد خدای بخشنده

کله کله خو به یې ویل چې بدخواهان مې ناحقه ځانونه سره شلولی مگر دوی داخبره نه ده اوریدلې چې خدا داده راسیالی نیست.

خوراهوښیار سړی و په کلي او اولس کې یې هماغه خلک یاران او اندیوالان وو چې ککړی یې دکار وي دکلي ډم مدین او دجومات ملازین العابدین یې له ځانگړو یارانو او دوستانو څخه وو.

ملک صاحب ددوی دیارانې لپاره هم ځانگړی وجوهات او دلایل پیداکړی وو چې اقتصادی اړخونه یې درلودل. ملک صاحب عقیده درلوده چې بی گټې اودس مات ته تگ هم نه دی په کار، ده به ویل چې ماته مې پلار مرحوم ویلی دی او وصیت یې راته کړی دي چې په کلي به همدا دوه کسان نازوی یو دکلي ډم اوبل دکلي ملا.

له دې دواړو کرکټرونو څخه د ملک صاحب برداشت په عجیب ډول د ټولنپېژندنې د علم پرنسټ باندې ولاړ و.

د ملک صاحب ویناوه چې که څوک غواړي په کلي او اولس کې یې له اعتبار او شخصیت څخه دفاع وشي نو د ملایانو او ډمانو کولمې دې غوړې ساتي ځکه چې دوی دواړه د اولس د راغونډیدو په وخت کې خپل فعال رول تر سره کوی د ښښتنو د غمو او خوښیو په غونډو کې یې حاضري یوحتمي آمر دي د واده او جنازې د کوزدې او فاتحې د چیغې او خبرتیا د جرګې او مرکې پر ځایونو باندې د ملایانو او ډمانو خدمات ډیر ضروري دي. مثلاً که مړی وی نو د جنازی لپاره د اولس د راخبرولو دنده به ډم ترسره کوی او د مړی مینځلو کار بیا د ملا دی جنازه بیا د ملار کار ده او په فاتحه کې هم ملا د آیتونو په لوستلو سره د مرحوم لپاره د مغفرت غوښتنه کوي.

همدارنګه ډم د خیرات د بګونه پخوي خلک راټولوي او د چیغو کار تر سره کوي د خوشحالی په مراسمو کې د ډمانو ونډه لږ څه اظافه وي.

له همدې امله که دوی وغواړي چې په مجالسو کې څوک غټ کړي غټولای یې شي او که وغواړی چې وړوکی یې کړی وړوکی کولای یی شي. هوښیار سړئ به له همدغو دوو تنو سره ښې اړیکی ساتی او د دوی ملاتړ به ترلاسه کوي.

د ملک ګل دین اکا له ملکی او سپین ږیرتوب څخه په هر ځای کې د همدغو دوو نفرو لخوا ډېره فعاله او پرځای دفاع کېدله.

مثلاً زین العابدین اخند زاده به ویل چې ملک خود قام سړی دي داولس سړی دی که ملک نه وی نو پر ټول کلي باندی تکه توره شپه ده نه مودی اوربدلي چې « سل دې ومره یو دې مه مره »

زین العابدین اخند زاده صاحب به په هره کوڅه هره مرکه او هرمجلس کې دګل دین اکا صفتونه کول او دهغې ظاهری اعمال به یی دجنتیانو په لیسټ کې اچول. ملک صاحب به هم داخند زاده صاحب دعلم، تقوې، ښه سړیتوب، بزرګی او مشر توب څخه خبرې کولې او په عامه مجالسو کې به یی داخند زاده صاحب په ښه سړیتوب پسې دبزرګی لکی ور ترله.

ملکه صاحب به ویل چې ما په خوب کې ولید چې پر کعبه یی طواف کاوو. همدارنګه ملک صاحب داخندزاده صاحب دتعویذونو هم ډېر ډېر صفتونه کول. دملک وینا وه چې داخندزاده صاحب تعویذ بې له شکه مریض تک اوپتری کوی.

له همدې امله باید داخند زاده صاحب دتاویز شکرانه لږ نه وي یاخوبه تور پسه وی که تور پسه نه وی نو باید چې د کلدارو شین زرګون وی بې له دې داخندزاده صاحب تاویز پرځای نه لګیږی. دفارسی متل دی چې اصل بی قیمت نیست کم اصل بی علت نیست.

ملک صاحب له اخندزاده صاحب سره دکوډو دتاویز رسی هم ترلې وه خلکو ته به یی ویل چې ماته دا دومره دنیا خدای راکړې ده او داخندزاده صاحب تاویز راکړې ده چې اخندزاده تاویز راکښلی ده نوځه

درته ووایم دروپو باران را باندې اورې تر اخند زاده صاحب مې صدقه کړې بې شکه چې بزرگ د زمانې دي.

داخند زاده صاحب او مدین ترمینځ هم اړیکې دومره دوستانه وې چې حد یې نه معلومېده مدین چې پخوا صرف مدین وو کله چې داخندزاده صاحب دخاص التفات وړ وگرزید اود کوټې حضرتانو ته معرفي شو نو دکوټې یوه حضرت صاحب دخپلو مریدانو لپاره خلیفه وټاکه او اوس په خلیفه مدد الدین یادېده. ملک صاحب دصاحبزاده نوم هم ورپورې غوټه کړ پوره نوم یې خلیفه مدد الدین صاحبزاده شو دملک صاحب او اخندزاده صاحب په واسطو په ولسوالۍ کې دعشر او زکات مسول وټاکل شو خلیفه مدد الدین صاحبزاده ترملک صاحب هم چالاکه اوبیداره وو په شپږ میاشتې کې یې خپله قواره خپل حرکات او سکنات ټول دصاحبزادگۍ په چوکاټ کې عیار کړل. د... قبضې پر ځای یې څلور قبضې ږیره پرېښوده کله چې به لوڅ سر کښیناست نو خاص راسپوټین به ځیني جوړ شو دسپین پاج لنگوټه یې ...محرابي شکل پر سر باندې تړله سپین د ترخزو کندهاري کالي به یې اغوستل سگک لرونکې سره فرانسوي بوټونه به یې په پښو کول.

خلیفه مدد الدین صاحبزاده دعشر او زکات په کار کې په خروارونو تریاک ټول کړل یو څه خویې طالبانو ته ورکول اما نور یې د یوه ایراني بلوڅ په مرسته رباط ته لېږل. په څو میاشتو کې دفور بای فور څښتن شو تر ملک یې هم ډېره مځکه بې بات واخیستله.

یوه ورځ مازدیگر چې خلیفه مدد الدین صاحبزاده زین العابدین اخندزاده او ملک حاجی گل دین دخرقې شریفې دزیارت په مخکې په چکر روان وو دخیتمو رفتار یی تر قدمونو مخکی وو ناڅاپه څو تنو ورو سوالگرانو چې دروښانفکرانو، استادانو، انجنیرانو او تکنیشنانو اولادونه وو چیغی شروع کړې.

ماما جانه خیرات راکړه. کاکا جانه خیرات راکړه په همدې شور او ځوږ کې دښار چرسی ټوکمار مامدک «محمد حق» راورسید او سوالگرانو ته یی مخ ورواړاوه.

ستاسو پلرونو بی طبقې ټولنه غوښته اوس وگوری نوی طبقه مامدک دلاس په اشاره باندی سوالگرو ته دخلیفه مدد الدین صاحبزاده اخندزاده صاحب او ملک مثلث وروښود.

# سرې سترګې

زر بی بی مړه شوه. په نه ده مړه تربورانو ته يې په لاس ورکړه. دخاوند تربورانو ته يې. ويې وژله دايې اوازه خپره کړه دتربورانو اوازه يې دقتل پرمخ دڅادر اچولو بهانه ده زر بی بی يې ووژله.

ټول کلی اوازو پر سر اخيستی وو. پرګوذر په کلي کې په جومات کې اوپه ټول ديار کې اوازه خپره وه، اوپه هغه ماښام زما لور ‹کيږدی› هم ريږديدله. په خوله کې يې ناړې وچې وې دداريو داسې ځپه پرې خوره وه چې ما په خوا هغه هيڅکله هم داسې نه وه ليدلې.

- پلار جانه زر بی بی مړه شوه که يی ووژله تاخو به په کلي کې له سړو ځخه پوښتنه کړې وی پلار جانه زر بی بی ولی ووژل شوه؟ دتربورانو اوازه يې رشتيا ده ولې يې په لاس ورکړه؟ ميرات خونه وه زوی يې در لود ګلالی پستکی زوی.

کيږدی زما خواته نوره هم رانږدې شوه په غاړه کې يې لاس راواچاوه اوبيا يې راته وويل:

- پلار جانه ته هم خپه شوی یې. ته هم پې غمجن یې ولې یې ووژله؟ په څه گناه په څه تادا؟

زما دلس کلنی لور پوښتنې پسې زیا تبدلي او شله توب یې هم له ډارن اواز سره یو ځای په هره پوښتنه کې دبلې پوښتنې په پوښتلو کې له ورایه معلومېده.

-بچیه ته ډوډی وخوره، پردی غم دی زه نه یم پې خبر زه خپلو پر سر اخیستی یم. ستا په وطن کې دورځې یوه زر بی بی نه مري ډیرې مري اوبیخي ډېرې.

- پلارجانه هغه خودمرگ نه وه. ښایسته وه مور ته یې سبق راښوولو ناز یې راکاوو د کلې په ټولو نجونو دا یوه ښځه گرانه وه همدا زر بی بی همدا دگلالی پستگي فواد مور.

فواد مې هم یادېږي چې مور به کور ته دسبق له پاره ورغلو نو هغه به مستي راته کوله په وره ژبه به یې ماتې ماتې خبرې راته کولې خپلې مور ته به یې زل بی بی ویل...

لور مې همداسې لگیاوه دزر بی بی یادونه یې راته یادول خپلې خاطرې یې راته یادولې چې مور پر ژغ کړ:

- وه نجلکی پربږده پلار دې ستړی دی له سهاره راهیسې دزر بی بی دماتم په خبرو اخته یې ډوډی دې وخوره او کرار دې سبق دروا خله.

خو کیږدی قسم کړی و چې خدای یو مالگې تروې ترڅو چې زه د زر بی بی معلومات وانه خلم پلار به په آرامه نه پرېږدم. شپه شوه او ټولو

سرونه په کنځرونو کې پټ کړل خو کيږدی د معمول پر خلاف نن زما ترخنګ ويده شوه.

-پلارجانه زه بيريږم. دزر بی بی له کيسې راوروسته ډېره بيريږم پلارجانه دکلي ټول خلک وايی چې دزر بی بی دخسر <کتماخان> په سترګو کې سره سره داغونه دي دا داغونه دخونکارو خلکو په سترګو کې وي ځوک چې ناحقه وينه تويوي هغه ناحقه وينه يې سترګو ته ور الوځي اوبيا يې سترګې سرې وې. پلار جانه تايې سترګې ليدلي دي دکتماخان سترګې دزر بی بی دخسر سترګې تک سره داغونه پکې معلوميږي که يې زر بی بی وژلې وي نود هغې دوينو ځاځکې به ور الوتي وي. هان پلار جانه! کنه همداسې به وي تا به هم اوربدلی وي چې دخونکارو خلکو په سترګو کې سره سره داغونه وي.

ماورته وويل: کيږدی بچو! کراره پريوځه په خواره خوب ويده شه ګوندې درواغ وي. خدای دې نه وژني هسې اوازې خپريږی په اوازو پسې سرمه ګرځوه. کراره ويده شه. ځو دقيقې وروسته کيږدی په بستره کې پر اړخ واوښته او بيا يې راته وويل:

- پلارجانه! ويده شوې. ما ته خوب نه راځي بيريږم. پلارجانه نن خو يوه کيسه راته وکړه يوه سمه کيسه زه ډېره بيريږم ګوندې ستاد کيسې په منځ يا اخر کې خوب راشي هماغسې کيسه راته وکړه لکه دواورې په شپه چې دې راته کړې وه. بيا به نو زه ويده شم.

خو ما داځل لږ په قهر ورته وويل: بچيه که نه ويديږی بيا اختر ته

تانه بیایم دبنجارانو دوکان ته. چې ته ماخوب ته نه پرېږدې زه هم تا ته هماغسې جامې نه دراخلم لکه د حاجي دلور.

زما لور له ماڅخه دا ډېره موده کیږي چې دحاجی دلور په څېر دزري جامو غوښتنه کوي او زه يې هم داختر درارسیدو په بهانه دبنجارۍ ددوکان او دزري جامو په راوړلو منتظره ساتم. په هغه شپه کېږدۍ له ما سره زما په کنځړ کې ویده شوه خو هیڅکله يې د زر بی بی دسرنوشت په باره کې پوښتنې پرې نه ښودې هروخت به يې دزر بی بی په باره کې پوښتنې را څخه کولې.

- پلارجانه! دتربورانو کلی يې ډېر لیرې دی فواد يې هم بوولی دئ؟ تاته خوبه معلوم وي ته خو گرځې ته خو بادام او ممیز اخلې لیرې لیرې کلو ته ځې دزر بی بی دخسر دتربورانو کلی ډیر لیرې دی؟ څومره به لیرې وي؟ بیخي ډېر لیرې دی؟

-هو بچیه هغه لريي دي او مانه دی لیدلی.

ماهسې ځان ترې خلاصولو.

ډېرّه موده وشوه دزر بی بی خبره اوس تقریباً دهیرېدو په حال کې وَه چې یوه ورځ غرمه د کیږدۍ مور په الوتې څېره زما خواته وکتل په سترگو کې يې اوښکې راډب شوې، په ژرغونی آواز يې دزر بی بی دسرنوشت له غمجنې تراژیدۍ خبر کړم:

-دکیږدۍ پلاره! دتربورانو اوازه یی دقتل پر مخ دپردې غوړولو هڅه وه هغه يې وژلې ده. ماته يې یور وویل: ویل يې چې کله زر بی بی

کابل ته دخپلې خور کره ولاړه نو هلته يې دخور کره ګلم جم ور اوښتي وو هرڅه يې ترې وړي وو او بيا يې حمله پرکړې وه الاس يې وراچولی وو. او هغه يې ...... شپږ مياشتې وروسته يې خسرګنی پې وپوهېده هغه يې توره کړه هغه يې په ګناه توره کړه. ويل يې پليتې کونډې چې دومره دې صبر نه کېده هلته به دې زموږ پر يوه تربور لاس ايښی و. خسر يې له قاره تور اوسپين پرله اوښت غاښونه يې چيچل اوبيا يې په نيمه شپه کې په خپلو تربورانو پسې احوال ولېږه هغه ماشوم دکتاخان لمسی يې تربورانو ته ورکړ اوزر بی بی يې دشپې په توره تياه کې له کوره وايسته هغه يې وژلې ده. هغه يې په دې ګناه وژلې چې په خيتهه کې دې غلا راوړې ده خو زر بی بی موږ ټولو پيژنده سړيه هغه بې ګناه وه. خدای دې په هغه جهان کې دکونډتون اوبيا دشهادت عوض ورکړي. خدای دې دګلالی ځواني او ښايست عوض په هغه دنيا ورکړي.

دکيږدۍ دمور خبرې لانه وې خلاصې چې کيږدۍ ساه نيولې په کوټه راننوته:

–پلارجانه مابيا کتاخان وليدو په سترګو کې يې سره داغونه وو سترګې يې سرې وې د چا دوينو څاڅکې به ور الوتي وي پلارجانه ټول خلک وايی چې داسې سره داغونه دخونکارو خلکو په سترګو کې وي څوک چې ناحقه وينه توی کړي هغه دناحقه وينې څاڅکی يې سترګوته ورالوځی تانه دې اوربدلي له خلکو څخه. خلک وايي همداسې وايي داسره داغونه چې دي دادخون او ناحقه خون نخښې دي. پلاره هغه يې

وژلې ده د تربورانو اوازه يې هسې اچولې ده خون پرې پټوي په دې اوازه دزر بی بی وينې پټوي خود هغې د وينو څاڅکی د ګتاخان ستر ګو ته ور الوتي دي او اوس له ورايه پکې ښکاريږی ما وليدل همدا اوس مې وليدل. ته راځه ته راځه چې در ويې ښيم.

# تحريک مړشو

دخوارلسو کالو وروسته خواجک دکابل ښار ته ننوتلی وو ، هغه به دهجرت په زمانه ک هر وخت کابل په خوب ليدلو دکابل کوڅې دکابل واټونه دکابل جشنونه اوپه باغ عليمردان کې دکابل مشهور چوپان کباب دده ته په پېښور کې خوړو هماغه خوند او لذت نه درلود کوموچې په کابل کې درلود . خو کله کله په نمک منډی ته په ههمدې نيت ورتللو چې دکابل دچوپان کباب يادونه تازه کړي.

کله چې دکابل له ښاره وتلو نو مازی يې ماتهی توري وې او چې مهاجر شو نو دځوانی په لومړنيو پسرلو کې دگناه او ثواب نيکی اوبدي اوبالاخره دمذهبی محاسباتو په حساب کې راگير شو.

دتقوی او پرهيزگاری لاره يې خپله کړه له نوی ژوند نويو پديدو او نويو ارزښتونو سره يې په مغزو کې دتعصباتو لړونه وغځېدل له لوڅ مخو ښځو به څو گامه اخوا گرزيدو دموسيقی له اوريدلو سره يی پريکړه وکړه ، دتلويزيون په هکله خويی نظر داوو چې همدا دغربی فرهنگ

شیطانی صندوقچه ده په لړ موده کې خواجک د مذهبی کتابونو ترڅنګ د سیاسی اسلام د معاصرو تیوری سنانو د کتابونو په لوستلو بوخت شو.

د سید قطب، حسن البناء، مودودی او شریعتی کتابونه به یې په خورا مینه لوستل. لمونځ اودس، روژه او نور عبادات یې په ډېره دقیقه توګه تعقیبول په لږه موده کې هغه په خپل ګوند کې دیوه اصل تحریکی په صفت وپېژندل شو.

کله چې د کابل ښار ته له څوارلسو کالو وروسته داخل شو نو د ۳۳ کالو پوخ ځلمی وو. چاغ او غوښن مخ یې ګڼې تورې ږیرې پوښلې وو.

پر وریښمنو اوږدو ویښتانو یې سپینه جالی خولۍ ایښې وه.

د پل باغ عمومی د بس تم ځای دده لپاره پردی نه وو خواجک چې به کله هم د پوهنې وزارت ته په پلار پسې تللو نو د پل باغ عمومی پر تم ځای به له ښاری بس څخه کوزېدلو او چې کله به هم کورته روانیدو نو همدغه تم ځای ته به ورتللو.

ده نادیه پر همدغه ایستګاه باندی لیدلې وه هغه وخت نادیه ماشومه وه خو خورا پی مخې ماشومه وه.

کله چې به هغه د خواجک مخې ته ودرېده نو ناڅاپه به د هماهنګ په اواز کې دی بیت دده په ذهن کې غزوونی وکړې:

من به وقت طفلی اش نه می گفتم ای دل ترا

این پریرو در جوانی ماه تابان می شود.

نادیه اوس ۲۵ کلنه شوې وه دسن له لوړ تیا سره یې د نسوانیت

دجذابیت گراف هم لوړ شوی وو اوږدې اوږدې کمڅۍ دپیکۍ وریښمین ویښتان چې نادیې به دسر دښورولو په هنرمند مانو رسره پورته غورځول. لوړه ونه پراخه سینه اوپړ سینه باندې دوی راوتلي جذابې غونډۍ چې له عادی تیو څخه څوچنده چاغې اوغوښینې وې.

پرشونډو باندی خفیف میک اپ او له طبعي ښکلا سره سره لږ څه مصنوعی هڅو نادیه ډېره جذابه کړې وه.

اوبیا چې خواجک له څوارلسو کالو وروسته هغه دپل باغ عمومی پر تم ځای باندې ولیده ډیر ورته متوجه شوه زړه نازړه شو پر زړه او ذهن یې دتعهد مکتبی رسالت، تحریک او تقوې او... خبرې را واریدی خو آخریې فیصله وکړه چې پوښتنه ترې وکړی دنادیې په لور ورنژدی شو په ګڼه ږیره کې یې ګوتې ووهلې او په ریږدیدلی ژبه یی پوښتنه وکړه:

مي بخشين يک گپ اس

ش ش شما نادیه استین؟

بلی بلی مه نادیه استم

شما؟

مه خواجک هستم. بچه ی مامور صاحب محاسبه معارف.

نادیې په طنازه ښاری لهجه ورته وویل څومره بدل شوی یې که دی ځان نه وای راښودلی نه مې پېژندی؟

دخواجک اوږدې ږیرې سپینې جالۍ داری خولۍ کړو - وړو او عاداتو خواجک د پخوا په پرتله بیخی زیات بدل کړی وو.

دواړو يو دبل د تيرو وختونو تپوسونه وکړل.

خواجک غوښتل چې له نادیي سره نوری خبری هم وکړی خو نادیي ست ورته وکړ: دریک جای گوشه بشینیم.

د نادیي ست دخواجک احساساتو ته اشتعال ورکړ د زړه درزا يې زياته شوه سمدلاسه يي ست ومنلو.

دواړو دپل باغ عمومی دیوه ایسکریم فروش دوکان ته ورغلل یو دبل مخامخ کښیناستل.

دنادیي نسوانی حرکاتو دخواجک دشهوت په اتشفشان کې دحرارتونو طغیان نور هم پسې ځپانده کړ. ده دیوه وړی او په جنسي لحاظ محروم ځاروی په څېر دنادیي په چاغو اوجذابو تيو کې خپلن سترگی ښخې کړې.

په لومړنی ليدنه کې دخواجک، دتقوی، تعهد، مکتبی رسالت او تحریکی اصالت په ماڼی باندی دشهوت زلزلې چاکونه او درزونه وکړل.

نادیې څو کاله په ماسکو کې تیر کړی وو او په کابل کې يې هم له هرډول اخلاقی قیوداتو څخه آزاد ژوند کړی وو. ددی لپاره اخلاقی قیودات دټيټ ارتجاعی ذهنيت له څانه جوړ زاړه خرافات وو ديوې چالاکې اوښاری اواره نجلی په څېر یی دنارینه وو دجذب او راگيرولو خورا ماهرانه اکټونه اوچالونه خپل کړی اوزده کړی وو. له همدې امله یی کوشش وکړ چې دخواجک دبی مهاره شهوت رسی په خپل لاس کې ونيسی. هغه پوهيدله چې دخواجک جيبونه دنورو شيخانو په څېر له

پاکستانیو کلدارو څخه ډک دي.

دراتلونکی کتنې لپاره خواجک نادیې ته په مکرویانو کې په خپل بلاک کې د کتنې وعده ورکړه دغه بلاک خواجک کابل ته له راننوتو سره سم قبضه کړی وو.

درخصتیدو په وخت کې نادیې په مسکی او خندانه لهجه وویل:

فردا

لیکن...

اوخواجک ژر پوښتنه وکړه.

فردا مگرچه؟

نادیه - لیکن کتی ما پیسه نیست.

خواجک په جیبونو لاس وواهه او نادیې ژر د زرگیزو لوټونو دوې بستې په خپل دستکول کې واچول.

نادیې د دوا د پیسو مطالبه هم وکړه چې د خواجک لخوا داظافی روپو په ورکولو سره تر سره شوه خو د دوا په مفهوم پوه نه شو چې له دوا څخه د نادیې مطلب څه شی دي؟

خواجک دسبا لپاره د دقیقو او ساعتونو په شمېرلو بوخت شو تېوله شپه خوب نه ور تلو عجیبو وسوسو راگیر کړی وو له ځان سره په عجیبو محاسباتو بوخت وو!

قتل لویه گناه ده که زنا؟

دوطن ورانیدل یوه گناه ده که دخپلو غرایضو اشباع؟

تحریک، تقوی، مکتبی رسالت او... داهرڅه تش اصطلاحات نه دي؟ چاچې ځانونه ناجیان گڼل. چاچې داسلامی عدالت او اخوت خبرې کولې هغوی په خپلو مینځو کې ورور گلوی نه شی کولای ملت به څنگه سره ورور کړی. آیا ددی لوی او نه تمامیدونکی قتل عام عاملین تش دگپ شپ تحریکیان نه دي داټول اصطلاحات غولوونکی اصطلاحات نه دي؟

کله به چې یې دناد یی پرونی ځېره تر سترگو شوه دشهوت یاغی څپو به یی په رگونو کې مالگې ورگډې کړې، غاښونه به یی وچیچل اوبیا به یی خپل سیکو ۵ ساعت ته وکتل شپه چې پخیدله دخواجک دشهوت جوش او تودوخه نوره هم پسې زیاتیدله خو آخر دسهار خواته دویلیم ۵ گولیو په زور ویده شو.

سهار دوخته څو تنو یارانو دلمانځه لپاره راجگ کړ خو بیرته یی سر دبسترې په بالښت پورې ولگاوه.

په تېرو څوارلسو کالونو کې دالومړی ځل وو چې دسهار لمونځ یی قضا کړی وو لکه چې دایی دعباداتو دقضاء اودگناهونو دآداء آغاز وو دغرمی لس بجی وی چې دبلاک دروازه وډبېدله اوله دې ډبېدو سره دده دزړه ډبیدل هم گړندی شول، چې دروازه یی خلاصه کړه نادیه وه دنادیې په لیدو سره یی په خوله کې لاړې کمی شوې دوجود په هر اندام کې یې دمرموزی زلزلی لړزوونکو څپو سرایت وکړ. دوینی هرڅاڅکی یی دشهوت دژبغړانده اورسواپڅرکې شو پر سترگو یی دخمار او مستی

یاغي وریځو پیڅول وغوړاوه.

دسپینو ورنونو، غونډو چاغو تیو لوړي غاړي او ګرمو شونډو هوس یې دګناهونو دنیا ته دلېږدېدلو تابیا وکړه.

ژر یې دبلاک دروازه قلف کړه.

راغلې میلمنه یې دخوب کوټې ته وروستله کوټه په یوه دوه نفری پالنګ باندې ښکلې کړای شوې وه زړه یې آرام ونه کړ.

دخوب دکوټې دروازه یې هم قلف کړه.

دزړه درزېدل یې نور هم پسې سیوا شول پر پالنګ باندې دنادیې څنګ ته کښیناست ژبې یې له زړه سره یاری نه کوله په توتله او ماته ژبه یې وویل:

چ چ چه چه کنیم؟

چیزی که دلت است

خواجک په سابندی او وارخطا لهجه وویل:

دیګه معطل چه هستم.

خونادې زلفو ته ځنډ ورکړ په وړو اونازکو ګوتویې دپیکې ویښتان پورته ووهل:

له دستکول څخه یې دروسی ودکا دوه واړه بوتلونه را وایستل شونډې یې مسکی کړې اوبیا یې پر میز پروت ګیلاس راپورته کړ ودکا یې په ګیلاس کې وڅنځوله او بیا یې په شهوت لړلی او ګناه ګاره لهجه وویل:

بغیر اینمی مزه نه میته

او خواجک دخپل ژوندانه لومړنی جام پورته کړ پر ذهن او زړه یې عجیب او غریب خیالات را واوریدل هغه دخپل څوارلس کلن جهاد ثمرته دروسي ودکا په تروو اوبو کې غوپه ورکړه.

دهغه تقوی ، جهاد ، مکتبی اصالت او تحریکی رسالت او... ټول دجام په تروو ، مالگینو اوبدبویه اوبو کې ډوب شول.

یوساعت وروسته خواجک خپلې ببرې شونډې دناډیې پر نرمو اوگرمو شونډو ایښې وې په پستو اوبلورینو ورنونو یې دریږدیدونکې شهوت بې مهاره نیلۍ ور شړلې وو دشهوت زگیروی یې دمکرویانو په کانکریټي بلاک کې عجیب ارتعاش پیدا کړی وو.

کله چې خمار مات شو کله چې د شهوت طوفاني سیلاب تم شو کله چې غریضه اشباع شوه.

نو هغه یوی لویې اینې ته ودرید. په ږیره کې یې دسرخې پوډرو واړه واړه بخرې بند شوې وو. خپله ږیره ډیره بده ورته ښکاره شوه . ماسپښین وو چې هغه دښار دیوه سلمان دوکان ته ورغی دده ببره او اوږده ږیره دسلمان په باطل دانۍ کې تار تار پرته وه او له مخ څخه یې دروسي کلونیا بوی تلو.

په شا او خوا مورچلونو کې، دسکر، لونا ، اوراگان او آر پی جی راکیټونو په خپلو درنو اوازونو سره دده دتحریک دمرگ اعلان کاوه.

خواجک ته دخپل تحریک دمرگ فاتحه هم چاونه لوستله.

جلال آباد

دلیندۍ دیرشمه ۱۳۷۵

# تشه ځولۍ

دباسکر معلم صاحب لپاره تدریس ترټولو کارونو غوره کار وو دده په نزد معلمي ترجنرالۍ هم ښه وه.

له بده مرغه داځو کاله معلمان هم سیاستمداران شوي وو دښوونځي معلمان په بیلا بیلو سیاسي ډلو او گروپونو پورې تړل شوي وو. اکثره وخت به دښوونځي په اداره کې سیاسي بحث روان وو هر معلم به دخپل سیاسي گروپ دصفتونو لپاره اوږده اوږده دلایل وړاندې کول خو باسکر معلم صاحب دداسې خبرو پر خلاف و ده په خپله شل کلنه وظیفه کې شاگردانو ته له لوست ځخه پرته په رسمي وخت کې بل کار نه وو کړی، حتې دومره وخت هم په لاس نه وو ورغلی چې دځان او خپل سرنوشت په هکله فکر وکړي.

دباسکر معلم صاحب کورنۍ دده پر بوډۍ ادې دده پر وړوکي ورور مجیب باندې مشتمله وه. زړې اوبوډۍ مور یې څو ځله دواده ورته ویلي وو خو خدا زده چې معلم صاحب ولې دواده خبره ټال کړي او ځنډولې وه په

شپږم ټولګی کې د معلم له یوه شاګرد ، میت سره خورا زیاته دلچسپی پیدا شوه میت یو ښکلی غنم رنګه ذکی او ذهین شاګرد وو معلم صاحب ته د میت کړه وړه له رازونو څخه ډک معلومېدل. څو ځله یې د کور پوښتنه ځینی وکړه خو میت خپل کور نه ور ښوده.

یوه ورځ یې داداري له کاتب څخه پوښتنه وکړه یاره دا زما شاګرد میت خورا تکړه شاګرد دی داڅوک دي او پلار یې څه کار کوي؟

کاتب صاحب په هټ هټ وخندل. معلم صاحب په حیرانتیا سره د کاتب خولی ته کتل د کاتب خندا چې آرامه شوه نو د معلم صاحب د سوال ځواب یې ورکړ: واه معلم صاحب لکه چې ته هم په هغو کوکې دروند یی؟

ولې؟

هغه خو د فاحشی زوی دی.

څه شی؟

معلم صاحب اوس هم نه پوهېدو چې کاتب صاحب څه وایی، خو کاتب صاحب بیا ورته وویل:

لکه چې نه شوی پوه مادرته وویل چې هغه درنډی زوی دي د هغه مور دا دروند کار کوی قیمت یې ۵۰ روپۍ دي.

خو دا یوه خبره واوره لکه چې مور یې پوه او تکړه ښځه ده له چلیدو سره سره په خپل زوی باندی سبق هم وایی.

آه خدایه. میت د فاحشی زوی دی عجیبه ده؟ د معلم باسکر حیرانتیا تر انتها پوري ورسیده د لږ ساعت لپاره یې خپل سر په دواړو

لاسونو تینګ و نیوه لړ چورت یی وواهه له ځان سره یی ورو شانته وویل:

حالا تو به په مخه اخیستې وي ګنې دومره مهربانه مور کله رنډی کیدای شي کله چې سهار دوخته ښوونځي ته ولاړ نو دباسکر معلم صاحب لومړنی تدریسی ساعت په شپږم ټولګی کې وو چې ټولګی ته مازی ورداخل شو نو سمدلاسه یی سترګې دمیت په لوری واړولې .دلوست ترپیل له مخه یی میت ته وویل : میت جانه دتاسې کور چیری دی؟ میت چوپ وو هیڅ یې هم نه ویل دټولګې کیپتان سمدلاسه ځواب ورکړ.

معلم صاحب ددوی کور دښار په مرکزی مینه کې دی؟ دکیپتان ځواب دباسکر په ماغزو ښه ونه لګید خوځه یی ونه ویل:

دمعلم صاحب په زړه کې دمیت له مور سره دکتنې لیوالتیا نوره هم پسې زیاته شوه.

ربنتیا خبره داده چې باسکر چیریې هم دکومې ښځې په هکله فکر نه وو کړي خو خدا زده دمیت دمور په هکله ولی دده دلیوالتیا حرارت دومره ژر جګ شو.

معلم صاحب به له ځانه سره ویل چې دمیت مور څومره لویه ښځه ده چې په داسې چاپیر یال کې هم خپل زوی لوست ته رالیږي.

قسمت به یی کار نه کوی بخت به یی تور وي دتور بخت میرمن به وی چې فاحشه شوی ده باسکر به په همدی چرتونو کې زښت ډېر خفه او

پریشانه شو.

دباسکر معلم صاحب اوس تر تولو لویه ستونزه داوه چې څه خیل دکړاځی له مور سره وګوری که چېرې بیا هم دلیدلو لپاره دښوونځی له اداری کاتب څخه دموضوع په هکله نوری پوښتنی کوی نو بیا خو تولو ښوونځی خبرېږی او ډېره زغېږی او هسی هم دښوونځی کاتب له مازی خبری څخه دډېرې رسوا ډول جوړوی.

مرکزی مېنه له ښوونځی څخه دومره لیری نه وه او معلم صاحب په اخبارونو کې دمرکزی مېنې په هکله یو مضمون هم لوستی وو له همدې امله دمیت ترمور پورې ورتګ دفاصلی له مخې ستونزمن کارنه وو خو له اخلاقی نظره مرکزی مېنې ته ورتګ له ستونزو ډک وو.

په مرکزی مېنه کې دښاروالی څو ګڼ بلاکونه وو چې څه دپاسه زر تنه رنډیانې او فاحشی پکښې اوسیدلې او په مرکزی مېنه کې ګرزیدل په اخلاقی لحاظ دیوه معلم او ښوونکی لپاره ډېر ګران کار وو.

معلم صاحب سوچونو په مخه کړ چې څرنګه به دمیت مور ووینی بالاخره په ذهن کې یې یو ترکیب جوړ کړ.

سهار چې باسکر معلم صاحب ښوونځی ته ولاړ. نوله واره یې میت راوغوښت او ورته ویې ویل:

هلکه ته په حساب کې ډېر کمزوری یی ځانته په کور کې هم یو معلم ونیسه او مورته دې ووایه چې سهار یوځل له ماسره ووینی.

میت خوارکئ حیران پاتی شو همدا پرون باسکر معلم صاحب په

حساب کې میت ته (۸۰) نومرې ورکړې وې او نن بیا بلـه بابو لالـه وایی.

میت یوې زړې بوډۍ ښځې ښوونځی ته راوستلو باسکر معلم صاحب بوډۍ ته هم وویل چې سهار دمیت مور ته ووایه چې یوځل له ما سره ووینی.

کله چې ماښام باسکر معلم صاحب په بستره کې سره وغځیدو نو حیران پاتی شوچرتونو په مخه کړ.

ها - دمیت مور به څنګه وي. سپینه به وی که به توره ، جګه به وي که مندرۍ، ته وایه ښوونځی ته به راشی کنه که راغله او دښوونځی کاتب ولیده نو خامخا به په ښوونځی کې ډنډوره غږوي او له خبرو به خبری جوړوي.

معلم صاحب دمیت دمور په خیالونو کې دخوبونو تال په بستره پورې ونښلولو. سهار دوخته ښوونځی ته دتګ لپاره تیار شو مور یی پوښتنه ترې وکړه باسکره بچیه نن څنګه دوخته تیار شوې.

باسکر دمور په ځواب کې وویل : په ښوونځی کې دمعلمانو مجلس دی زه هم ورځم ډېره ضروری غونډه ده.

معلم صاحب په ګړندیو ګامونو دښوونځی په لور روان شو . ټوله ورځ یی دمیت دمور دراتګ دقیقی حسابولې خو داخری درسی ساعتونو په وروستی وخت کې دمیت مور دمیت په ملګرتیا دښوونځی اداري ته ورننوته باسکر په اداره کې یوازې ناست وو لږ څه وډار شو.

دمیت مور په خورا احترام معلم صاحب ته وویل. زه دمیت مور یم تاراغوښتې یم.

بلې هو. ماراغوښتې وې. معلم صاحب په زړه کې ځان سره لګیاشو.

وه – ښاسته هم ده. پاکه هم ده نظافت یې ښه دی او درنډې غوندي خونه ښکارېږي.

معلم صاحب په رېږدیدلی اواز دمیت مورته دکښیناستلو ست وکړ.

دمیت مور حیرانه شوه تراوسه چاپه دومره احترام نه وو ورته ویلي چې کښینه له ځان سره یې سوچ وکړو چې شاید معلم صاحب نه وي خبر چې زه رنډې یم ځکه چې نوي راغلی دي.

معلم صاحب دمیت مور ته وویل:

میت په حساب کې کمزوری دي.

په خواب کې ورته وویل شو چې « معلم صاحب میت خو وای چې معلم صاحب دحساب په مضمون کې ماته پوره اتیا نومرې راکړي دي.

«سم وایي که لږ څه نور کوشش وکړي نو په ټولګي کې اول نومره کېږي » له یوې لنډې چوپتیا وروسته معلم صاحب وویل:

په کور کې څوک درس ورته وایي ؟

دمیت مور: هیڅوک یې هم نه ورته وایي پخپله یې وایي.

معلم صاحب: په کور کې معلم ورته پیدا کړه.

دمیت مور: څه شی معلم ؟

معلم صاحب: هو. که ستا خوښه وي زه به درځم کور به سبق ورته وایم.

دمیت مور: معلم صاحب مور چې چیرې اوسیږو هغه ځای ته کورنه وایی ستاسي راتګ هلته ښه کار نه دي.

معلم صاحبګ په عارفانه تجاهل کې پوښتنه وکړه.

ولې هغه بیا څنګه؟

دمیت مور سر ښکته وځړولو په شرمناکه لهجه یې وویل:

ز ز ز زه فاحشه یم

معلم صاحب ځان سره وښورولو او خپلې رنې عینکې یې پر سترګو سمې کړې دمیت مورته یې مخ ور واړولو او وی ویل:

هیڅ پروا نه کوی په تاکې دیوې ښځې مور استعداد شته په همداسی حالاتو کې هم خپل زوی ښوونځی ته رالیږی دا داوچتو میندو کار دي.

دمیت مور سرځوړند کړی وو. اوپه عاجزه خوله یې معلم صاحب ته ویل:

معلم صاحب ته یو شریف انسان یې ستا غوندې انسانانو راتګ زموږ ځای ته ښه کار نه دی پر شرافت به دی داغونه ولګیږی نه معلم صاحب هیڅکله نه.

څو ورځې تیری شوی دمیت دمور عاجزئ او جذابیت دمعلم صاحب دذهن اوزړه ټولې فضاګانې تسخیر کړې وې.

معلم اصحب سوچونو په مخه کړی وو آخر یی له ځان سره فیصله وکړه چې راشه دیوه خراباتی خریدارپه توګه دمیت دمور کوټې ته ورشه.

باسکر یوه ورځ هماغه بوډی تر تعقیب او څار لاندی ونیوله چې میت به یی ښوونځی ته راوستلو آخر یی دمیت دمورکوټه پیدا کړه دسګریټو اوپان دغرفی ترڅنګ دمیت دمور کوټه وه چې یو خړ ټاټ یی پر دروازه باندی راځوړند وو.

دښوونځی درخصتی په ورځ معلم صاحب قصد وکړ چې دمیت دمور کوټې ته ورشي معاش خویی لا دوه ورځې مخکی اخیستی وو.

معلم صاحب ځا سره سم کړو. خپله یوه جوړه نوی کالی چې دیوی ورځې لپاره به یی په بکس کې ایښی و را وایستل. کالی یی واغوستل دښار دکړو وړو اوفرعی لارو لخوا مرکزی مبنی ته روان شو.

کله چې دمیت دمور کوټې ته ور ورسید نو سمدلاسه یی خړ ټاټ پورته کړ پر څلورو زینو ور پورته شو دبلډنګ په لومړنی پوړ کې یوه سپین سری ښځه پرچوکی ناسته وه.

باسکر پوښتنه تری وکړه. دمیت دغو کوټه؟

بوډۍ ښځې دګوتی په اشاره کوټه ور وښوده دروازه دمیت مور په ځان پسې بنده کړیوه کله چې باسکر دروازی ته زور ورکړ دروازه خلاصه نه شوه زړه یی و درپیدلو. دډار او وهم عجیب کیفیت یرغل پی وکړ.

پښې یی درنې شوې یوځل یی په زړه کې وویل چې راشه باسکره په یوه منډه تیښته وکړه خو ژر بوډۍ ښځه له چوکۍ را پورته شوه او دروازه

یی وتکوله بوډی ښځې ناري کړې.

رینو وا رینو تاته وایم رینو دروازه خلاصه کړه وګوره چې څوک راغلی دی لږ څه وروسته دروازه خلاصه شوه دمیت مور رینو له خوبه راپاڅیدلې وه په خوب جنو سترګو یی بوډی ته وکتل بوډی دمعلم صاحب خواته اشاره وکړه درینو سترګې چې پر معلم باندی ولګیدی حیرانه شوه باور یی نه کیدلو چې دا دښوونځی باسکر معلم صاحب دی.

په حیرت لړلې ژبه یی ورته وویل:

معلم صاحب ته اودلته؟

راځه راځه دننه راځه.

باسکر کوټې ته ورننوت پر پانګ باندی میت ویده وو .

دمیت مورخپل کمیس له چوکی څخه پورته کړ معلم صاحب ته یی وویل کښینه پرچوکی کښینه معلم پر چوکی کښیناست.

معلم صاحب خپلې دوی ګوتې تندی ته ور پورته کړی اودمیت مورته یی وویل:

دمیت په هکله مې درته ویل چې پر کور سبق ورته وایی کنه؟

دمیت مور ورته وویل ماخودرته وویل چې دلته نشی کیدای . دلته میت ته کورس نه شی ور کیدای داخویدنامه او ناکامه ځای دي.

معلم صاحب وویل:

آخر ولې؟ که زه دلته راشم او پرکور باندی میت ته درسونه ووایم څه مشکل دي.

رینو: معلم صاحب داخو درنډیانو ځای دی دلته تاغوندې شریف انسان بدنامیږی.

معلم صاحب: دا اعتراض خو باید زه وکړم.

رینو: گوره معلم صاحب دامیت په نظر کې ستاډېر غزت شته میت تاسو دبل جهان خلک بولی که تاسې هم دلته راشی نودمیت دتربیت دنیاگۍ به تالا والا شی.

معلم صاحب تاسو ولاړ شی که میت راوینې شو اوته یی دلته ولیدې نودهغه پر تربیت کې به څه پاتې شی.

معلم صاحب خاموش اوچوپ پاتې شو خو دزړه ټوپونه یی گړندی شول بې اختیاره شو .

درینو لاس یی په خپل لاس کې ټینگ ونیو په ریږدیدلی او تبجنه ژبه یی خپله طمع ور وښودله. رینو خپل لاس دباسکر له لاسه راکش کړه په منکره ژبه یی ورته وویل:

نه معلم صاحب داسې نشی کیدای اقلاً زه ستا دشرافت اودمیت دتربیت په خاطر دا کار نشم کولای.

معلم صاحب: آخر ولې نشی کیدای له ماسره پیسی شته.

رینو: معلم صاحب دپیسو خبره نه ده زه نه غواړم چې میت تادلته وگوري.

معلم صاحب درینو له کوټې څخه په ډک اوغصه ناک زړه راووت چې کورته راغی نو تبه یی شوه کټ ته وخوت ویده شو دوی ورځی

ښوونځی ته نه شو حاضر. په دریمه ورځ چې ښوونځی ته ورغئ میت یی په ټولګی کې ونه لیدلو په سبا بیا میت نه وو راغلی اندیښنو په مخه کړ چې میت ولې نه راځی ؟

په بله ورځ باسکر د ښوونځی په اداره کې ناست وو د شاګردانو د کورنیو کارونو پارچې یی کتلې ناڅاپه رینو د ښوونځی په اداره ورننوته.

رینو درنډیانو لباس غورځولی وو پر سپین تندی یی د سره سندرو خال ایښی وو .

باسکر ته د رینو نوی لباس خورا خوند ورکړ په زړه کې داتیر شو یاره رینو لکه چې واده کړی دی د خرابات ژوند یی پری ایښی دی.

د میت مور د معلم صاحب خوا ته نږدې ورغله لاسونه ی د هندو رواج په دود جوړه کړل د معلم صاحب په مخ کې یې پورته کړل او بیا یی ورته وویل:

زه د هغه تیرې ورځې په نسبت ښښنه غواړم.

نه نه د څه بخښنه څه چې تا وکړل ښه دې وکړل.

رینو: امیت پولیسو بوتلو له همدې خبری سره یی وژړل.

معلم صاحب: ولې په څه؟

رینو: هغوی وایی چې دولت یوه لایحه تصویب کړې ده چې د هغې د حکم له مخې د فاحشو د اولادونو تربیه د دولت په غاړه ده.

باسکر ته د دولت نوی تصویب شوی لایحه ور یاده شوه.

معلم صاحب ورته وویل: دا خوبدکار نه دي هلته به د میت ښه پالنه وشی ښه چاپیریال به ورته پیدا شي.

رینو: نه نه داسې نه ده هغه په تکلیف دي زه له میت څخه پرته ژوند نشم کولای.

معلم: نو زه څه کولای شم؟

رینو: که ته پولیسو ته ووایې

معلم: ولی نه که زما په ویلو کیږی زه خوبه ورته ووایم.

رینو: که ته ورته ووایې چې میت زما زوی دی؟ د رینو په دې خبره د معلم صاحب له ښنو څخه مځکه ووته بلی هو معلم صاحب که ته دا ووایی چې رینو زما ښځه ده ما د ټولنې د ښغورونو له ډاره هغه په خرابات کې ساتلی وه شاید چې پولیس ما ته زما زوی بیرته حواله کړی.

معلم صاحب چوپ شو رینو چې د معلم صاحب چوپتیا ولیدله نور یی وژړل ژر د معلم په ښنو کې ور ولویده زه به ستا شم سرله نن څخه به یو گیراک هم نه راپریږدم ټول ځان به تا ته حواله کړم.

د معلم صاحب زړه پر رینو باندی وسوځیدلو داسې یی محسوسوله چې رینو واقعی زما ښځه ده.

معلم صاحب رینو راپورته کړه ډاډ یی ورکړ.

ته درځه زه هم د پولیسو سرماموریت ته درځم

رینو: رښتیا وایی راځې؟

معلم صاحب! هو زه به دا پارچې کښیږدم درځم

رینو معلم صاحب ته په شکر گذارو سترگو وکتل اوله ښوونځي څخه روانه شوه.

معلم صاحب ژر ژر پارچې سره راټولې کړې د ښوونځي مربوطې څانگې ته یې وسپارلې اوسیده د پولیسو سرماموریت ته ورغی دده تر ورتگ مخکې رینو هلته رسیدلې وه

معلم صاحب د پولیسو د سرمامور په دفتر ورننوت اوله واره یې ځان ورته معرفي کړ. سرمامور صاحب زه د ښوونځي معلم یم نوم مې باسکر دي.

سرمامور: ښه نو د خرابات له کوڅو سره ستاڅه اړیکې دی؟

باسکر: هیڅ ډول اړیکې نشته ددی کوڅو هلکان زمونږ شاگردان دی.

سرمامور: مگر ته نه یې خبر چې دولت دا لایحه منظوره کړې ده مونږ ددی لایحې د حکم له مخې د خرابات د کوڅې واړه هلکان او نجونې د دولت په ساتنه کې اخیستې دی.

باسکر پوهیږم خو دولت د یوه ماشوم مور څه خیل جوړیدای شي؟

سرمامور: له ماسره منطق مه وایه دا قانون دی او مونږ د قانون د عملي کولو لپاره دلته ناست یو گوره معلم صاحب ته ولاړ شه د نورو شاگردانو تربیې ته دې ملاوتړه مونږ پریږده.

باسکر معلم صاحب. خپله غوښتنه په عجز کې سره راونغاړله اوسرمامور ته یې وویل:

سرمامور صاحب دایو شاګرد راته پرېرده مهربانی به ده دی وي.

سرمامور ورنه وپوښتل: کوم شاګرد.

معلم ځواب ورکړ: میت

سرمامور بیا ورته وویل: ستالیوالتیا په میت پورې تړلې ده که دهغه په مور رینو پورې.

معلم صاحب نور څه ونه ویل له اداري ووت خو دمیت دمور ځولی دشنه اسمان ترلورینی لاندې تشه پاتې شوه.

د۱۳۵۷ قوس

# ورکې لارې

کم اصل سړی به خپل جومات او هديره هېروي مسافری عيب نه ده خود نورو خويونه او رنګونه را خپلول د سيال سړی کار نه دی.

ما به د جومات په مخ کې هميشه همداسی خبرې اوريدې دا خبری به زموږ د کلی سپين ږيرو کولې.

زموږ د کلی د جومات لاره نيغه د هديرې خواته تللې وه.

د نورو کلو خلکو به زموږ کلی له همل امله ستايلو چې جومات او هديره ښه پالی - د جومات او هديری قدر کوی.

زموږ د کلی هديره ډېره پخوانی هديره وه د انګريزانو دوخت ډېر شهيدان په کښې ښخ شوی وو. خلکو به د تبو، مرضونو او آفتونو لپاره خوردې ترې وړې او ما بيا له ډېری مودې وروسته خپله هديره وليدله.

کله چې زما دادی ژامی وريږد يدلی نو په ځګيروی کې يې وويل: بچيه ما خپلې هديری ته ورسوه. د آدی وصيت زموږ د لېمو پر اسمان

باندی غوړیدلي وریځې راو اورولی خو د آدی دلبهمو وریځی دورکو لارو دورکو منزلو په لوری وخوځېدې او لکه چې ادی د ژوندانه ټول غمونه ټول دردونه او ټول کړاوونه د تل لپاره شاته پرېښودل.

داځو کاله کیږی چې دسترګو اوربنت په موږ کې یوه عادی خبره ګرزیدلی ده او زموږ په ټولو خلکو ټولو لویانو، کمکیانو، ځلمو اوپېغلو کې دلبهمو له چینو څخه تروی او مالګینی اوبه را څاڅی دګریوان پر لاره دنامعلوم سرنوشت پر لوری درومی خدازده دا رنه نه څاڅکی به د زمان څومره ځولې له ځان سره نغاړي ترڅو به څاڅي او دڅڅوبی انتها به یی ترکومه منزله رسی؟

موږ چې جنازه خاورو ته وسپارله نو خلکو زموږ دغم لپاره همدا تعزیتی کلمات ادا کول.

خدای دی پر ورحمیږی دبخت ښځه وه خپله هدیره دخپل پلار نیکه هدیره یی په نصیب شوه.

ګوره چې موږ به څه شو ګور او کفن به پیدا کړو کنه؟

دبختور سړی به خپل وطن وی خپل به یی ګور وی. کور به یی هم په خپل وطن کې وي او ګور به یی هم په خپل وطن کې وي.

د آخرت په ورځ به په خپل وطن کې را پورته کیږی.

څومره بختوره ښځه وه په ځنکندن کې یې هم خپله خاوره او خپله هدیره په یاد وه دادا اصیلو خلکو کار دي.

اوبیا دوه درې کاله نور تیر شول موږ دخپلې خاورې او خپل اختیار

دحاصلولو لپاره له خپلې خاورې شړل شوی وو. او زموږ پر لپمو باندی بارانی وريځو دخپل ګور او خپل کور په بيلتون کې بارانونه اورول خوزموږ په کور او کلی کې هم داولس سترګې نه وی وچې شوې. خلکو به ويلو چې داخاوره دوليانو ده خدای به يې وساتی.

خود ساتلو لپاره يې ککرۍ په ګوليو ويشتل کيدلې هديری په بمونو او حجری په توپونو. او بيا چې مايوبل ځوانيمرګ خپلې هديرې ته ورساوه نو هديره په ببرو ببرو بوټو ځوځانو او ګونګانو پوښل شوې وه.

نوی قبرونه او نوی مزارونه ډير شوی وو پر شناختو باندی سپين سره شنه او ډول ډول زړوکی ځوړند وو.

دنويو قبرونو سرونو ته پر ډبرو باندی داسی کلمی ليکل شوی وی:

انارګل دچارګل زوی عمر ۲۵ کاله دروسانو په ګولۍ شهيد شو.

زيرک دجومک زوی عمر ۲۰ کاله له دښمن سره په يوه نښته کې شهيد شو.

شمال خان دګل جان زوی عمر ۳۰ کاله د دښمن په ګوليو وويشتل شو.

ميرويس دملک زمری زوی عمر ۲۷ کاله په ۱۳۶۰/۲/۱۲ تاريخ له روسانو سره په يوه نښته کې شهيد شو.

زموږ دکلی هديره ډيره غټه شوی وه خود کلی حجری او جوماتونه خالی خالی بريښيدل.

کلی کنډوالې شوی وو خو هديره ښه اباده شوی وی مادخپل کلی په

اباده او ودانه هديره کې دډېرو قبرونو لوحې ولوستلې.

ځما ډېر همزولي دژوندانه له جادې څخه دمرګي په ابدي لاره تللي وو.

ما ته شاړې کوڅې او وداني هديرې رامخ ته کيدلي او زه دماضي په ورکو لارو کې ورک شوی وم.

زموږ دکلي دکږو کوڅو غرمې به څومره له شوره ډکې وې کله چې به شپنو رمې په کوڅو راسرکړی دوريو، سيرلانو او ميږو رمبهار دغرغږو غړنجهار او دشپنو دهای او هوی چيغې په همدغو غرمو کې دکلي تريخو سيورو لاندې زموږ لوبې دلوګرو دلرونو تيره کيدل دپټکونو ډکيدل او له ګودرونو داوبو چليدل ما چې به سوچ کولو په نننی معاصر فلمي جهان کې داسي يوه فلمي صحنه هم نه وه. خو اوس هرڅه او هر څه دعدم اونيستي په لوري روان وو دتورو تنورونو خولې پټې وې. دکلي په کوڅو کې درمو اوشپنو اثار ورک شوي وو. کښتونه تور دښتونه وو. دژوندانه ټولې نښې دورکو لارو په ورکو منزلو کې پټې شوې وې.

زه يوځل بيا دهديرې خواته ولاړم له ملنګ نه مې لاره وپوښتله هغه ډېر ليرې ځای راوښود راته ويې ويل چې پر هماغه لاره به سړک ته وخيژي.

اوبيا دوه درې کاله تير شول او زه ديو بل ځوانيمرګ له جنازې سره دکلي هديرې ته راغلم هديره داخل په يوه ښار ناپرسان بدله شوې وه. پيل اوپای يې نه معلوميده. دکلي کومه لويه لاره چې دهديرې خواته

تللي وه هغه په قبرونو ډکه شوی وه.

دکلي دجومات دمخې لوی انګړ چې کله به زموږ کليوالو دمرګ او ژوبلې پرپېښو دڅلي او نرخ له مخې مرکي خلاصولي اوس ټول په قبرونو ډک شوی وو.

جومات هم يوه لوی قبر ته پاتي کيدلو دژوندانه ټولې نښې پکښې ورکي وی دجومات دحجری طالبان دعلم له طلب څخه وتلي وو دقدرت په طلب کې وو. حجره تشه توره وه.

دحجرې مخې ته په لويه هديره کې زه يوځل بيا دقبرونو په کتبيو باندې په لوست بوخت شوم.

ديوه قبر پر کتيبه يې ليکلي وو شهيد طالب ميراجان دتورګل زوی عمر ۲۰ کاله دشر اوفساد دقواو په لاس په ميدان کې شهيد شو.

شهيد طالب العلم نور علم دمحمد علم زوی په ګرشک کې دتوپکيانو په لاس شهيد شو.

دبل قبر کتيبه بيا داسې وه:

شهيد ملاکلام خان دجانان زوې دتوپکيانو په لاس شهيد شو.

او مايوځل بيا دډېرو قبرونو کتيبې ولوستلې ټول شهيدان وو که مجاهدين و که خلقيان که توپکيان وو که طالبان که دائتلافي قواوو لخوا وو که دحزب لخوا.

لکه شهادت چې زموږ دهيواد داجاری برخه وی خو تر قبرونو آخوا څو تنه متحرک جسدونه ګرزيدل ببری ببری ږيری وراسته ارتجاعي

فکرونه ددبرو ددورې اخلاق اوله ژوندانه سره کلک دښمنان . مافکر کاوه چې دمړو له هديرې څخه به ووزم خو مرگ زما دټول وطن پرهره لوېشته خاوره باندې قبضه لګولې وه. اوزه دژوند په ورکولارو پسې گرزيدم.

شاجوی دحمل ۱۲ - ۱۳۷٦

# په عمري دار الخلافه کې

د تورو شیشو په تور بینز پسې د شا لخوا دوه پیک اپ گاډی او درې
عرادې پیجارو موټران چې په وسله والو کسانو ډک وو بدرگه روان وو دا
کاروان د هغه پروتوکول برخه وه چې د کابل سقاوی دربار د مولانا
صاحب لپاره برابر کړی وو.

کله چې بینز د کانتی نینتال هوټل په مخ کې ودرید نو لیډر صاحب
چې په ژمی کې یې داوړي د لمر توري عینکې په سترگو ایښې وې
او د ژمي وړینو جامو یې وجود له عا... حالت څخه زیات پړسولی وو له
بینز څخه راکوز شو باډیگاړډان چې د سرو ښښتان یې پر اوږو پراته وو
او د بریرو سنت یې له قبضې څخه هم ور اوښتې وو په خورا چټکتیا له
خپلو گاډو راکوز شول دوړو لیوانو په څیر یې ښا او خوا وکتل د هوټل په
احاطه کې ولاړ سوالگران چې د ژمي سړو څپو اوبې رحمه بادونو یې
د وجود آن او توان کم کړی وو ټول د لیډر صاحب په لور ورمات شول په

لومړنی ډله کې یو شمیر کابلی ماشومان چې عمر یې تر دوولسو کالو راکم او ترشپږو کالو ور پورته وو د رهبر صاحب په مخ کې ودریدل.

ټولو په یوه سلا چیغه کړه «کاکا پیسه یک نان خوبتین خیرببینی»

په ماشومانو پسې جوخت یوه ډله ښځې د رهبر صاحب بینز ته ور ورسیدلی په داسې حال کې چې د ژمی د ځیلې د سړو سیلیو نیزی یې له جامو او چادریو څخه هاخوا تیریدې ټولې په یوه خوله گویا شوی:

«مولاناصاحب گل امو یتیمکای مه ره خو امروز نان بتین»

دی شور ماشور چیغو او فریادونو د پریږ چاغ او سپین لنگوټی لیډر صاحب پر اعصابو ډیر بد تاثیر وکړ. د گنو بانو گاو په اشاره یې د باډیگاردانو قوماندان چې د ثناوی ږیری لرونکی یو پوخ سړی وو وپوهاوه. قوماندان د باډیگاردانو خواته وکتل سمدلاسه په خرپ او ترپ کې د کلاشینکوفونو خولې د سوالگرانو په لور ور واوښتې خو ټکان ونه شول.

قوماندان په قهرجن آواز سره چیغې کړې. گوم شوین فاحشه ها حرامی ها امر فایر ره میتم گوم شوین بریدر شما لانت «لعنت»

د قوماندان له دی گواښ سره سوالگران یوی اوبلې خواته په منډه شول هغه اغزن تار چې د هوټل پر احاطه راگرزیدلی وو د ډیرو سوالگرانو د پرتوگونو او زنگنونو د څیریدو او زخمی کیدو سبب شو.

ټولو فریاد شروع کړ. اوگار شدیم خدایا. اخ - واخ - الله، خیر وپرده.

دفریادونو شور لا نه وو غلی شوی چې دلویدیځ لخوا دیوه راکیټ سغ شو او دسوالگرانو په مینځ کې ولگید دانساني کوفته شوي غوښې واړه واړه بخرې آن دباغ بالا تر غاړو پورې ورسیدل په ځواب کې دهوټل له شا اوخوا مورچو څخه توپونه دښار پر هستوگنو سیمو ور وغوړمبیدل خدازده چې څومره نور سوالگران او دیوی ډوډۍ طلبگاران به کوفته شوي او قیمه شوي وي خودهوټل په لاندې لغم کې، ناست پریږ او چاغ لیډر صاحب ته داکار دکابل دگناهونو کفاره ښکاریده.

هغه دا المیه دکابل دهغو گناهونو سزا او جزا بلله چې څوارلس کاله کابل کړي وو دکابل په هره څنډه کې یو آمر په دغه قتل عام کې بوخت وو دجنگ لوخړو دکابل اسمان توره تبې گرزولي وو او تردغه تبې لاندې دلوړو زخمونو، مرگونو ، غمونو او رنځونو فریاد هم دهسک په لور ور پورته کیدلو او ورکیدلو.

گنهگار کابل سوځیدلو او دغه اور یې دبې گناه زمنو او لوړو په وینو باندې نورهم ژبغړانده کیدلو. شپې او ورځې همدغو لوخړو او دیوی گولۍ ډوډۍ دغوښتلو فریادونو یوشان کړي وې دکابل دشنه آسمان هره پیښکه خړه وه اودهر ستوري رڼا تته.

لړ هم کابل نه شو لیدلای دخړو وریځو پېڅول یې په مخ راکش کړي وو خوپه لغمونو پخو مورچلو او درهبرانو په کانکریټي هستوگنځیو کې ژوند له خپلو ټولو رنگونو سره رنگین وو.

دشهوت دوحشیانه هوسونو تور دیبان دبې دفاع کابلیانو پر

نوامیسو باندی چوشوی وو.

هغه لویه مانۍ چې کانتی نینتال یې ورته ویلو دجنراتوري برېښنا په رڼا باندی روښانه وه.

دکانتی نینتال په اشپزخانو کې دعصري خوراکونو بوی آن دباغ بالا تر څنډو پورې لاسبر مو ته رسیدلو.

خوتر باغ بالا را لاندی بیا دانسانی کباب شوو غوښو بوی چې دبارو تو داور بوی هم ور سره ګډ وو آن ترچار آسیاب او پل چرخی پورې رسیدلو.

دا یو رقم بوی خاص بوی وو چې صرف دکانتی نینتال هوټل داحاطې شا او خوا محسوسیدلو او دابل بوی عام بوی وو چې دکابل په هره څنډه هره ګوښه او هره محله کې انسانی سبرموته رسیدلو دابوی دبارو تو په اور دکباب شوی انسانی غوښې بوی وو. دا بوی داسی عام وو لکه توی شوی انسانی وینه، لکه لوټ شوی ناموسونه، لکه تار تار عفتونه او عصمتونه لکه بی پیسو ارزانه انسانی مرګونه. تر انتر کانتی نینتال را لاندی یوه بله مانۍ هم ودانه او روښانه وه په دغه مانۍ کې به پخوا غلام بچه ګانو ژوندی انسانی غوښې دشاهانو او درباریانو دسات تیری لپاره برابرولی او وړاندې کولې.

د پښتو ورنونو لوڅو سینو نمکینو پستو شونډو لوبه دلته ددربار او ددرباریانو ډېره ښه تفریح وه خو اوس بیاهم دلته درباریان هستوګن شوی وو دوی هم له انسانی غوښو څخه لوبه جوړه کړې وه دغو درباریانو

بیا دبارو تو او اوسپنو په اور کې دانساني غوښو او هډوکو بخری په هوا کې رقصول.

پخوانیو درباریانو به دشهوت لپاره دانساني غوښو سپینې سپینې بوتۍ یو پر بل سره اړولې خو ننني درباریانو بیا دیوه ډول سادیزم دمرګونی غریضی داشباع لپاره داکار کولو که به یې دقدرت دناکامی او بدنامی غریزی دمړیدو لپاره کولو ؟ ددغې ماښۍ ترمخه یو لوی واټ دکابل زړه ته تیر شوی وو.

دواټ دواړو غاړو ته کمکی کمکی ژنې دسګریټو په خرڅولو اخته وو هره ورځ به دغه کمکی سوداګران دمرګ له معاملې سره سودا کیدل اودمرګ سودا په کابل کې ډیره ارزانه سودا وه.

په کابل کې دکچالانو پوستکی هم تر انساني ژوند ګران وو اوبیه یې لوړه وه.

دغلام بچه ګانو ترماښۍ را لاندې دښار یوه اوږده وات ته پر بایسکلونو او هغو ګاډیو چې دخرو پر ځای انسانانو په ځان پورې راکشولې دلرګو او سکرو قاچاق را روان وو اوړه چې دښار هاغه بل پلو ته له پنجاب څخه راتلل هم را قاچاق کیدلو.

په دغه واټ کې اکثره هغه خلک ګرزیدل چې ژوند یې دیومن اوړو او یومن لرګو په خرڅلاو باندی تیریدلو.

پر کراچې باندې دلرګو راوړونکو به دژوند په بیه دښار له هغه لرې څنډې څخه چیرته چې یوبل پاچا دخپل سلطنت قلمرو پکښې اعلان

کړی و لرګي راوړل او بیا به د یو من لرګو د راوړلو پر سر باندي یو څو لرګي ددوی پر څټونو او سرونو باندی هم لګیدل خو په همدغه جاده کې به د مجبوریت په وجه د ښار د حکمرانانو ټوپکیان هم ګرزیدل دوی به پر سرو پکولونه او پر اوږو برګ دستمالونه ایښی وو او ځانونه به یی د څرمنو په جمپرونو کې خورا په ساړ اوباټ کې سره راپیچلی وو او له دوړو څخه به په جدی ډول لیری ګرزیدل.

ټوپکیانو به هغې پیسی عرضه کولی چې د ښار د هغې بلې څنډې باچا به یی پر چلښت باندی بندیز لګولی وو خو ټوپکیانو په زور باندی هم دغه سره او شنه لوټونه چلولای شول.

کله چې داوړو یوه پلورونکی له رانیونکی پوښتنه وکړه چې بیادر پیسه ات چیست نورانیونکی په غضب ناک اواز کی وویل دیګه چیست پیسه ی اصلی است.

خو پلورونکی په عاجزه لهجه ورته وویل: بیادر اوجانمیګره همداخبره د پلورونکی پر وجود باندې د کلاشنکوف پر ضربه تمامه شوه دسرک غاړه په اوړو سپینه او په وینو رنګینه شوه. خو هماغلته پورته د ښار پر لوړه او حاکمه نقطه باندې په هوټل کې ناست هماغه پریړ چاغ او د بنګ سري چې د کابل د دربار کومکونو ته د خپلې ګنې ډیرې اوپړسیدلی خیټې ترشا په کمیټن کې ناست وو د دغو نویو پیسو د نه چلولو پر عاملینو باندې د جهاد فتوی ورکوله چې ناڅاپه د محکم کنکریټ ترڅمکې لاندی کوټو ته څو تنه عریان ور ننوتل.

پريږ چاغ او دبنگ سړی د يوه ماهر اکتور په څېر غولوونکی ځيره ځانته غوره کړه او په ډېرو غوړو کلمو يی له عربی هيئت څخه هر کلی وکړ.

ده دراغلی هيئت هر يوه کس ته وويل:

ياشيخ کيف حالک. کيف حالک ماشاء الله

کيف حالت...

ده زياته کړه چې موږ د مصالحې لپاره راغلی يو په ښار کې چې کوم قتل عام روان دی هغه تم کوو ده دخپلې پاکستانی ډلې له اغيزمنتوب څخه په ماته او گوډه عربی ژبه باندې څو خبرې وکړې خو ژر يی پر ستر گو باندی د طمعې او حرص پردې راوغوړېدې کله چې د هيئت يوه افريقايی نژاده عرب ده ته د مصالحې دلگښتونو لپاره يو چک ورکړ نو په تندی کې يی کوتان سره وغځيدل د غوښن مخ له څېرې څخه يی دخوښۍ عجيب تاثرات څرگند شول. ماښام د کابل راډيو په خبری سرويس کې داسی خبر خپور شو.

د پاکستانی علماو د مصالحتی کميسيون مشر (......) نن له يوه عربی مصالحتی هيئت سره وکتل.

ده له هيئت سره په کتنه کې څرگنده کړه چې کابل اوس د عمری عدالت دارالخلافت دي او دافغانستان اسلامی دولت د دغه خلافت د هڅو په عامولو لگيا دی؟!!

# دنفس قاتل

ملاحسین علی به سهار دوخته په خپل ځانگړی ملایی یونیفارم کې د ښار د کړو وړو کوڅو له لارې مدرسې ته تللو.

په ټوله لاره کې به حسین علی یوازې خپل قدمونه ترلیمو لاندې کړي وو او سر به یې ځمکې ته ور ځوړند وو.

ملاصاحب نجیبه او بې آزاره څېره درلوده پر وړو وړو سترگو باندې یې تور بانهوگان راځړیدلي وو. له مخروطي ږیرې سره یې نریو خرمایي بریتونو ښکلې ښه اړخ لگولی وو او ښه ښکاریدل لږ خبرې یې کولې خورا خاکساره او اخلاقي انسان وو. کله چې به مازدیگر دچکر لپاره راووت نو دواړه لاس به یې ترشا نیولي وو له ځان سره به یې پټ یوڅه ویل:

دناحیې خلکو گمان کاوه چې ملاصاحب اوراد پخوي. دمدرسې مدیر او نورو معلمانو له حسین علي سره تودې اړیکې نه درلودې اما کرکه یې هم نه ځینې کیدله.

خو دده له شخصیت ځخه یی یوه پټه اغیزه احساس کړې وه.

دمدرسی دمدیر او معلمانو پر خلاف زده کوونکو ته حسین علی گران وو ځکه دده کله هم شاگردان نه زهیرول او نه یی په غصه او قهر سره خبرې کولې له دې سره سره زده کوونکو دده په درسی ساعت کې دصنف دټولو درسی اصولو رعایت کاوه.

شیخ ابو الفضل یوازنې سړی وو چې په مدرسه کې یی له ملاحسین علی سره تودې اړیکې درلودې او ددوی ترمینځ به کله کله ښه مجلسونه کیدل.

شیخ ابو الفضل دعربی معلم وو همیشه به یی له خپل ریاضت او کرامت ځخه لاپې اوشاپې ویشتې.

شیخ ابوالفضل به ویل چې ما ځوکاله مراقبه کړې ده ځو کاله مې له ادم زاد سره یوه خبره هم نه ده کړې.

زه فیلسوف یم، صوفی یم له ځانه یی دبوعلی سینا، جالینوس او مولوی وارث جوړ کړی وو.

له هماغو بی ارزښته شیخانو ځخه وو چې خپل معلومات بی یی دخلکو پر مخ باندی ور وهل. له هرې خبرې سره به یې یوه عربی مقوله تیروله دعربی حروف به یی په چنغړک کې په خورا ملایی او اخندی سلیقه سره ځایول اوپه یوه بریالی موسکا سره به یی دخپلو وعظونو دفتحې او کامیابی اغیزی دخلکو په ځیرو او مخونو کې ځېړلې.

نورو خویی پر خبرو باندی غوږ نه نیولو خو دملا حسین علی بخت

تور وو چې له شیخ سره یې انډیوالي شروع کړه او دده دلاپو اوشاپو تر اغیزو لاندې شو. ملاحسین علي به کله کله شیخ ابو الفضل خپل کورته بللو او کله کله به په خپله د شیخ کورته ور تللو.

ملاحسین علي د تهران له یوې علمي کورنۍ ځخه وو اود دارالفنون فارغ وو دوه درې کاله یې له خپل پلار سره ماموریت کړی وو خود تصوف په هکله یې فطري غزونو په ژوندانه کې یو عجیب بدلون راووست.

همدا د تصوف مینه وه چې ملایي په یوه مدرسه کې په معلمۍ باندې مجبور کړ. حسین علي چې کله ماشوم وو نو د کوځې ملا تصوف ته تشویق کړی وو ځکه چې دده د متصوفینو له شعرونو سره ځانګړې مینه درلوده او د متصوفینو د شعرونو په ردیف او قافیه پسې به یې شعرونه جوړول. ددوی د کوځې ملاشیخ عبدالله چې خپله یو صوفي وو دده ته به یې د صوفیانو کیسې کولې. د منصور حلاج د لوړ روحاني مقام په هکله به یې ورته ویل چې منصور د دار پر سر هم چیغې وهلې چې « انا الحق »

دې کیسې د ملاحسین علي پر ماشوم ذهن باندې زښته ګړندۍ اغیزه کړې وه.

شیخ عبد الله به ورته ویل:

هلکه کومه خاصه خمیره چې ستا په شخصیت کې شته د هغې په وجه به ته ډېر ژر د تصوف لوړو پوړیو او مدارجو ته ورسېږې.

د شیخ عبد الله همدا خبره به همیشه د حسین علي په ذهن کې پرته وه

. ده له وړکتوب څخه لا داهیله درلوده چې کله هم مناسب وخت پیدا کړي ریاضت ته به ګونډې لګوی خوپلار یې ددار الفنون ښوونځی ته ولیږو او په وړکتوب کې یې د ریاضت چانس له لاسه ووت.

په دار الفنون کې هم ملاحسین علی د تصوف په هکله ډیر څه ولوستل د تصوف د ځانګړو کتابونو مطالعې ته یی ملا وتړله او د ریاضت او طریقت په باره کې یې معلومات تر لاسه کړل.

دده کشر ورور به دده د فکرونو کلک مخالفت کاوه د حسین علی په تصوف او طریقت پورې به یی ټوکې کولې او ویل به یی:

« دا افکار یوډول ارتجاعی او ټیټ توهمات دی چې د انسان ژوند او ځوانی له مینځه وړی ». خو حسین علی ته به دورور داخبرې ډیرې ټیټې او مادی خبری ښکاریدی خپل ورور به یې ‑ معاصر جاهلیت د غولیدلی لارې یو ورانکاره لاروی ګڼلو او په زړه کې به یې پټ د ورور پر مادی افکارو باندی خندل او په خپل هوډ کې به یو ډول لجوجانه قوت ورته پیداکیدلو. د همدغه فکری بیلتون په وجه د پلار له مرګه وروسته دورور او ملا ترمینځ اړیکې وشلیدې او دواړه پر جلاجلا لارو باندې روان شول.

د تصوف او طریقت په لور د ملا لیوالتیا هله نوره هم ګړندی شوه کله چې په کرمان کې یوبل شیخ دده په هکله د شیخ عبدالله د خبرو په تائید وویل: په تاکې د طریقت لوړو پوړونو ته د الوتلو خاص ځواک ښته مرشد ځان ته پیداکړه.

وخت له لاسه مه ورکوه مراقبی ته ګونډه ولګوه. د شیخ د غوڅوونو

حسین علي یوې پټې ګوښې ته ور تیل وهلو ریاضت ته یی ګونډه ماته کړه څو کاله یی پر ځان باندی دخپلو اوپردو دروازه وتړله.

دځېره په څېر یی ژوند کاوه کله چې به یی په ښوونځي کې درسی ساعتونه پای ته ورسیدل نوپه خپل کور کې به یی ریاضت ته ځنګنونه ولګول. دملاکور وړوکی کور وو خوښه پاک کور وو هغه دچاخبره ده چې دکور په انګړ کې یی اوبه چنبل کیدلی په کور کی یی یوه سپین سری بوډۍ او یو تن خانه سامان ساتلی وو.

کله چې به کورته راننوت په یوه خاصه سلیقه به یی ملا یی چپنه دلرګي په موږی باندی وځړوله خپله توره لنګوټه به یی دپردې پرمخ باندی را ځوړنده کړه او بیا به دکور ځانګړی کتابتون ته ورغئ.

دکتاب تون لپاره یی دکور ترټولو لویه کوټه بیله کړې وه. کتاب خانې دکړکینی رڼا ته یی یوه سپینه کوربچه هواره کړې وه اودکور بچې مخامخ یی یومیز اویوه چوکۍ ایښی وه دمیز شا او خوا ته یی په پلنډو پلنډو کتابونه پراته وو داکتابونه ټول دتصوف فلسفې او فارسی کلاسیک ادب کتابونه وو.

دملاصاحب دژوندانه یوازنی ساعت تیرئ همدا کتابونه وو چې ده به دشپې په مهال دلالټین رڼا ته مطالعه کول.

دمطالعې په وخت کې به یی دمشکلو مسایلو په باره کې له ځان سره لنډ یادښتونه لیکل اوسبابه یی شیخ ابوالفضل ته وړاندی کول او په دې ترتیب به یی خپلې مطالعاتی ستونزې هوارولې.

که څه هم د ملا حسين علی معلومات په هيڅ ډول له ابو الفضل څخه کم نه وو خو ددی په خاطر چې په طريقت کې دوراندې تگ لپاره د مرشد وجود ضروری وو له همدې امله يی له خپل مرشد سره پر مشکلو ابياتو او مسايلو باندی بحث کاوه.

شيخ ابو الفضل د ملاحسين علی د سليقې او ذوق سړی نه وو ابو الفضل يوازې او يوازې د امرچلولو شيخ وو هيڅ يی نه وو زده کله چې به د ملاحسين علی له يوې سختی پوښتنې سره مخامخ شو نو ويل به يی تراوسه پورې لا ته دی پوره نه يی رسيدلی صبر کوه چې وخت يی راشی په دې هکله بيا درته وايم.

شيخ ابو الفضل يوازې او يوازې همدې يوې خبری ته اړم شوی وو چې نفس دی ووژنه. نفس دی خوار کړه، نفس دی ذليل کړه پر نفس دې ځان برلاسه کړه او پر نفس باندې دبرلاسی يوازې لار مراقبه او رياضت دی ته له همدې لارې کولای شی نفس دې راځملوې.

شيخ ابو الفضل د نفس وژنې په موضوع پورې اړوندې عربی مقولی احاديث او د متصوفينو شعرونه راټول کړی وو په دی جمله کې د احديث چې »اعدی عدو ک نفسک التی بين جنبک « يعنی ستالوی دښمن ستا په خپل وجود کې دی چې هغه عبارت له نفس څخه دی.

او د ابل حديث « جهاد ک فی هوا ک » داوحدی داوينا هم وه هرچا چې نفس وواژه غازی دی او د ابل شعر:

نفس اگر شوخ شد خلافش کن

تیغ جهل است در غلافش کن

په دې هکله دا بیت:

نفس خودرا بکش نبرد اینست

منتهای کمال مرد ایـــــنست

شیخ ابوالفضل به دخپلو مواعظو په ترڅ کې ویل چې:

«دعرفان دمسلک سالک باید ددې فانی نړۍ مال او جایداد ته په سپک نظر وګوری ځکه چې تر ټولو لویه شتمنی دتصوف په نړۍ کې دنفس راڅملول دي.

شیخ به دمکتبی پردې بیت باندې هم استناد کاوه:

«ګـرتـو بـرنـفس خـویـش شـکـسـت آری

دولـــت جـــاویـــدان بـــدســـت آری»

دسنـایی دابـیـت یـی هـم دوعـظ زیـنبت وو:

نـفـس تـارنجـور داری چـاکـر درګـاه تـسـت

بـازچون میـریش دادی کم کند چون توهزار

هـمـدارنـګـه دشـیـخ سـعـدی داویـنـا:

«مـراد هـرکـه بـر آری مـطـیـع آمـر تـوشـد

خلاف نـفس کـه فـرمـان دهد چویافت مراد»

دطریقت ځینو مشایخو نفس له سپې سره تشبیه کړی وو او دا درنده باید چې وتړل شی په ځنځیر دریاضت.

شیخ ابوالفضل به ویل:

پوه شه ای شاګرده نه ده په کار شاګرد لره او سالک لره غرور او نه ده ورله په کار چې وښایي ناداانو خلکو ته پټ راز د طریقت او ریاضت ځکه چې دا کار د طریقت لپاره لازه ده د تاوان لازه ده سالک لره چې وکا مشورت له خپل مرشد سره.

په دې باب وینا کا حافظ علیه الرحمه:

گفت آن یار کزو گشت سر دار بلند

جرمش آن بود که اسرار هویدا میکرد

ملاحسین علی لاله پخوا نه له ریاضت او هندی فلسفې سره ځانګړې مینه درلوده سخته هیله یې درلوده چې هندوستان ته د معلوماتو د تولولو لپاره ولاړ شي او له هندو مهماتمانو او جوګیانو څخه د ریاضت اسرار او رموز تر لاسه کړی له همدې امله یې د شیخ ابوالفضل فرمایشات په ورینه تنده منلو او د نفس وژنې لپاره یې خپلې ټولې هڅې په کار اچولی وې.

ملاصاحب به فالونه هم کتل یوه ورځ یې د مثنوی په خطی نسخه کې فال واچاوه ناڅاپه په فال کې دغه بیتونه راووتل:

نفس بی عهد است زآنروز کشتنی است

او دنی و قبله گاه او دنی است

نفس هارا لایق است این انجمن

مرده را در خور بود گور و کفن

نفس اگرچه زیرک است و خرده دان

قبله اش دنیا است اورا مرده دان

اب وحی حق بدین مرده رسید

شد زخاک مرده ی زنده پدید

دې فال دملا په تصمیم کې نور هم پوخوالی رامینځ ته کړ ملا دنفس وژلو لپاره یې دمتصوفینو په آثارو پسې څېړنې شروع کړې دنفس وژلو دموضوع په هکله یې دمتصوفینو ډیر کتابونه راټول کړي وو. هرڅومره چې به یې دتصوف دکتابونو پاڼې اړولې هومره به دنفس وژنې په باب دصوفیانو تاکید او ټینګار زیاتیدلو.

دنور وحدت په رساله کې یې دفارسي په کلاسیک نثر کې داسې ولوستل:

ای. سیده ونیسه لمنه درياضت اوخپل نفس سپیڅلی کا په اوبو درياضت ولاړ به شی خیال دباطل له زړه ستا څخه او وبه نیسی دغه زړه دحق رڼا.

دمیر حسینی په کنز الرموز کې یې بیا دموضوع په اړه داسې ولوستل:

«ازمقام سرکشی بیرون برش

مارا مارد است میزن برسرش»

دمرصد العباد په کتاب کې یې بیا داسې کنبلي وو:

«پوه شه ای سالکه کله چې په رياضت سره شروع کاندی دنفس دسپیڅلتیا هڅه نو پیدا به شي تا ته برلاسی پر ملکو او هسک باندی او

درته ښکاره به شي پټ رازونه».

دناصرو خسرو په کتاب کی یی بیا دغه اشعار ولوستل:

«تــو داری اژدهــا بــرســر گــنــج
بــکــش ایــن اژدهــا فــارغ شــوازرنج
وگــر قــوتــش دهــی بــدزهــره بــاشــی
زگــنــج بــی کــران بــی بــهــره بــاشــی»

ملاحسین علي چې به دنفس وژنې په موضوع پورې همدغه اړونده اشعار لوستل نو هڅه به یی نوره هم ګړندۍ شوه.

ده غوښتل چې ډیر ژر هم دریاضت له لارې اوهم داستدلال له لارې پر نفس باندې برلاسی وموميی او دپټو رازو پټ جهان ته لارد پیدا کړی څه دپاسه یوه اونۍ ملا شپه او ورځ کوشش وکړ چې خپل منزل ته لاره پیدا کړی خود صوفیانو ځینو ویناگانو به بیا دشک او تردید دنیا ته بوتللو.

خصوصاً دحافظ دې وینا:

«حدیث ازمطرب ومی گو وراز دهر کمتر جو
که کس نکشود ونگشاید بحکمت این معمارا»

اویاهم دابیت:

«هروقت خوش که دست دهد مغتنم شمار
کس راوقوف نیست که انجام کارچیست»

که څه هم ملا پوهیدلو، چې مې - ساقی، مغان، خرابات وغیره دصوفیانو او دطریقت دلارې دعارفانو خاص کنایات او مشابهات دی

اما دعمر خیام درباعیاتو په باره کې به یی اندیښنه بیخی زیاتیدله ځکه دعمر خیام ددی رباعی تفسیر دده لپاره خورا مشکل وو.

کس خلد وجحیم را ندیدست ای دل
گویی که از آن جهان رسیدست ای دل
امید وهراس ما بچیزی است کز آن
جز نام و نشانه نه پدیدست ای دل

اویاهم دا رباعی:

خیام اگر زباده مستی خوش باش
بالاله رخی اگر نشستی خوش باش
چون عاقبت کار جهان نیستی است
انگار که نیستی چو هستی خوش باش

دی استادانو بیا په خپلو ویناگانوکې خوښی ته بلنه ورکوله په داسې حال کې چې دده خپله ځوانی ټوله دخوښیو له دنیا څخه بې برخې کړې وه..

کله کله به یې په خپلو تللیو وختونو پسې دیوی ترخې پښیمانی احساس دوجود په رگونو کې وځغلیدو ځکه دده دا دولس کاله پر ځان ربړونه او کړاوونه راوستی وو ژوند یې دټولو لذتونو له نعمت څخه بې برخې کړی وو. خو لاتر اوسه پورې یی لاس خالی وو اودخپلو هڅو له نتیجو څخه بې برخې وو ملاحسین علی پر ځان باندې نور کړاوونه هم راوستل خوراک یی تر پخوا کم شو. دپروړی پر یوه نالی باندی به

ویدیدلو ځکه چې شیخ ابوالفضل خوداشعر هم ورته ویلی وو:

« نفس چون سیر گشت بستیزد

توسن اسا بهر سوالیزد »

ملاحسین علی پوهیدلو چې که مې مازی پنبه کړه شوه ټول ریږونه او زیارونه به سیلاب یوسی له همدې امله یی دریاضت په وسیله پرځان باندی نور کړاوونه هم راوستل. خود شهوت کافر دیب چیری هم په آرام باندې نه پرېښودلو د شپې به د شهوت غریضی ډیر ځورولو باالاخره تصمیم یی ونیو چې په دغه ستونزه کې له خپل مرشد څخه لازم دستور او هدایت واخلی.

لمر لانه وو لویدلی چې دشیخ ابوالفضل کورته روان شو دتهران دښار دیوی هستوګنې محلی له لارې چې کله دابوالفضل کورته ورسید نوڅه ګوری چې یوسړی له غټ ډانګ سره ولاړ دی ښکنځاوې یی کولی پوچ اوپاش یی ویل ملا چې دسړی غضبناکو چیغو ته غوږ شو نو داسی یی واوریدل:

« آشیخه تازما دلور ختیه وپړسوله. زه به ستا ختیه درڅیری کړم ته که د نر زوی یی راووزه چې زه څه در باندې کوم.

په علی قسم که دی پریږدم.

په عباس قسم که دې پربږدم

زما لور دی په کور کې په خدمتګاری ونیوله بیا دی مخ ور سره تور کړ »

ملاحسین علی اریان دریان ولاړ وو.

ژر دغضبناک او خواشینی سړی څنګ ته ور نږدې شو او ورته وییل:

وروره ته خطا شوی یی داخو دشیخ ابوالفضل کور دي.

خواشینی سړی نور هم په خشکه کې شو ملاته یی وویل:

«همدا شیخ ابوالفضل دربښیم. همدا دووس دربښیم په قسم که یی پرېږدم چې زه یی په محکمه کې قاضی ته نیغ ونه دروم.

ته صبر کوه زه به داسی آش ورته پوخ کړم چې پر سر یی یوه لویشت غوړی پراته وی».

ملاحسین علی پوه شو چې جنجال واقعاً ژور دی ځان یی یوی خواته کړ.

سوچونو اندیښنو او وسواسونو په مخه کړ له ځانه یی دلیونی په څېر پوښتنې کولې:

آیا رښتیاده؟ آیا دی سړی به رښتیا ویل چې شیخ یی له لور سره دا درنه معامله کړې ده.

شیخ چې تر هرڅه له مخه دنفس وژلو په باب اوږده اوږده نصیحتونه کول پخپله دنفس غوښتنو ته سلامی شوی ده.

که رښتیا همداسی وی نو آیا دانور صوفیان هم همداسی وو په همدی ترتیب یی نور خلک دژوند له لذتونو څخه بې برخې کول او پخپله یی دپردې ترشا هرڅه کول.

ملاحسین علی خپل سر په دواړو لاسونو ټینګ نیولی وو زښتوزیاتو وسواسونو راګیر کړی وو.

له ځان سره یې تصمیم ونیو چې باید همدا نن قضیه روښانه کړي؟

بیرته د شیخ د کور په لور راروان شو چې دروازه یې وډبوله یوې ښځې ورته وویل چې څوک یې؟

په ځواب کې یې وویل زه ملا حسین علی یم.

یوه شیبه وروسته دروازه خلاصه شوه او ملا د شیخ ابوالفضل کوټې ته ور ننوت کله چې په اطاق ور ننوت نو ابوالفضل یې ولید. تک سور مخ، رنګ کړی ږیره، زیړې زیړې داړې او اوږده پزه یې په ډراماتیک شکل په غولونکی ماسک کې سره راوغاړله له حسین علی سره یې په غیږه روغبړ وکړ چې بیرته کښیناست ملاحسین علی ته یې وویل:

یا الله را وړاندی شه نن ماښام له فقیرانو سره ډوډۍ وخوره ابوالفضل په یوه سره دستمال کې لږ څه وچه ډوډۍ او یو غونډاری پیاز ایښی وو.

خو ملا ورته وویل: کوردی ودان هسی پردی لاره تیریدم را وګرزیدم چې پوښتنه دی وکړم. په همدې وخت کې د ابوالفضل د کور په انګړ کې د ښځو ګڼه ګونه شوه چې د حویلی انګړ ته یې وکتل نو څه ګوری؟ یوی توری پیشو غټ سور کړی چرګ په خوله کې نیولی دی پیشو منډې وهی او ښځې د شا لخوا د پیشه پیشه چیغی وهی ابوالفضل چې دا حالت ولید ژر یې چینه غورځاره کړه له الماری څخه یې د څرمنی تازیانه

راواخیسته او په پیشو پسې یې منډه کړه ترڅو شیبو وروسته په نیولی ساه بیرته کوټې ته راننوت. دخجالت په عالم کې ین ملاحسین علی ته وویل پوه شه ای شاګرده که پیشو تر اوو سو دینارو زیات تاوان ورسوي وژل یې روادي. ملاحسین علی د آریانی یوې بلې دنیا ته ولاړ دشکونو اسمان ورته صاف شو ملا پوه شو چې داشیخ یو ډیر معمولی سړی دی دهماغه سړی ادعا هم ورته ربنتیا ښکاره شوه چې له ګور سره یې ه بدلمنتوب تورن کاوه ملا دشیخ له کوره راووت شیخ هم تر دروازې ور سره راووت.

کله چې کوټې ته راووت په آرام سره یې ساه واخیسته.

تصوف، طریقت، ریاضت او داهرڅه تش ګپ ورته ښکاره شو. دې پوه شو چې دشیخ داټولی غولونکی مانوری ددی لپاره وی چې سره کړی چرګان وخوري دباکره نجونو بکارت وربزه کړي اوبیا نور خلک دژوند له خوندونو او رنګونو څخه بې برخې کړي.

کله چې ملا دشیخ له کوره راووت نود تهران پر ښار باندی شپې قبضه کړې وه ملا دخلکو په ګڼه ګوڼه ورګډ شو بی ارادی دښار په واټونو کې وګرزید. په زړه کې یې د کرکی یوغټه غوټه پیدا شوه سریې د تصوف له فکرونو څخه خلاص شو په ویښه باندې یې عجب عجب ډاروونکی خوبونه ولیدل. بالاخره دیوه روښانه نیون تر رڼا لاندې یې دیوی شراب خانی لوحه ولوستله چې پې لیکلی وو ماکسیم.

دشراب خانې په لور ور ننږدی شو پرده یې پورته کړه دبار په سالون

کې پر يوه چوکۍ کښيناست دبار دسالون کوټه دکباب لوګيو او دشرابو، بوی پرسر اخيستی وه په ژوند کې دلومړي ځل لپاره بار ته راغلی وو دبار سالون ورته عجيب ښکاره شو. دبار داکاونټ له ميز سره جوخت يوی چاغې ښځې پيانو غږوله يوه بل سړي بيا په وايلن باندی نغمه سر کړې وه.

دبار ګيراکان ټول روسان او قفقازان وو عجيب عجيب ښکاريدل ملا يوځل ټولو ته په دقيق نظر وکتل ټول مست او خراب وو په دی مينځ کې يوه ځوانه ګرجستانۍ ښځه چې بهرنۍ لهجه يې درلوده دملاحسين علي دميز په مخ کې ودريده او له مسکا سره په ګډ اواز يې وويل:

ګرانه. نن شپه خومې دعقل له وسواسونو خلاصه کړه يو ګيلاس شراب خورا باندی وڅښه.

ملاسمدلاسه ورته وويل« کښينه مهرباني وکړه، ګرجۍ ښځې دستی دبار شاګرد ته ورغږ کړل ديوډول نابلده شرابو فرمايش يې ورکړ.

ساعت وروسته دبار شاګرد له يو بوتل شرابو او دووګيلاسو سره حاضر شو ګرجۍ ښځې ګيلاسونه تيار کړل دواړو خپل ګيلاسونه دژوند دنيکمرغير په هيله سره وجنګول.

ملا لومړی ګيلاس لږ په سختۍ سره پورته کړ وجود يې ګرم شو په رګونو کې يې تودوخی ورګډه شوه وسوسی يې له سر څخه په کډه کيدو شوې.

ګرجۍ ښځې پرله پسې پيکونه ورته تيارول او ملا پر سر اړول. له

وايلن او پيانو څخه سوځونکی چيغه راپورته کيده.

ملاحسين علي ته د آزادئ احساس غيبره ورکړه د متصوفينو هغو صفتونو ته يی پام شو چې دوی د شرابو په هکله کړی وو. غوښتل يی چې نن شپه د خپلو ټولو عذابونو انتقام واخلي په ليونتوب کې يی دا شعر له ځان سره زمزمه کړ.

هنگام تنگدستی در عيش کوش و مستی

کاين کيميای هستی قارون کند گدارا

گرجی ښځې به د نيشی په ليونی جهان کې د ملا خواته خپلی مستې سترگې ور واړولی او ملا ته به د خيام خبری ور يادی شوې.

کله چې د شرابو بوتل خالی شو نو ملا غوښتل چې ولاړ شی خونه شو پاڅيدی د گرجی ښځې په مرسته ولاړ شو لاسونه يی ريږديدل پتيا کيدانه يی گرجی ښځې ته ورکړه ترڅو د بار بل خلاص کړی.

ملا د گرجی ښځې په مرسته له ماکسيم څخه بهر راووت د آس يوه بگی يی کرايه کړه په بگی کې د ښځې ترڅنگ کښيناست سريی د ښځې پر تيو کيښود په دی وخت کې ملاحسين انگيرله چې د تهران د ښار ټول واټونه مست دی او سندره وايی بگی د ملا د کور په مخ کې ودريده ملا له گرجی ښځې سره راښکته شو نور هغی کوټی ته ولاړ نه شو چير ته چې به يی په خپل نفس باندی عذابونه راوستل بلکه هماغی سپينې کور بچی ته ولاړ له گرجی ښځې سره پر کور پچه څملاست.

ملا په سبا باندی مدرسې ته نه ورغی په بل سباهم غير حاضر شو.

په دریمه ورځ دښار ورځپاڼو دا خبر خپور کړ.

ځوان معلم ملاحسين علی د نامعلومو وجوهاتو له مخې انتحار کړی دی.

ژباړه: دسنبلې لسمه ۱۳۷۷ کندهار چاونی.

# ثواب او عذاب

لږ څه مخکې کې لاهوابنه وه دلمر تر زرینو وړانگو لاندې دشنو

کښتونو په شا اوخواکې دبزگرانو کارونه روان وو.

خو دېر ژر دوریځو تورو لړو دشنه آسمان نیل رنگه خیمه په توره او

لوغړنه کیږدۍ بدله کړه.

تروږمۍ په ډیره بیړه خپره شوه او څو دقیقې وروسته بارانی څاڅکې

دتورو لړو له خیتې راوڅڅېدل.

دبس موټروان چې لږ څه وړاندې یې سوارلیان په بس کې راپورته

کړي وو په ناڅاپې توگه له ستونزو سره لاس او گریوان شو. دبس دمخ

څراغونه یې ولگول خو دڅراغونو په رڼا کې هم لاره سمه نه معلومېده.

دموټروان لپاره وړاندې تگ نور هم له ستونزو ډک شو بس یې دیوې

لویې ونې خواته ودرواه.

یوه مساپر په ریږدیدلی آواز وویل: اخ څومره پخه تروږمۍ ده

بل مساپر ځان په څادر کې ټینگ وپیچلو. یاره باران هم گړندۍ شو

خدای دې خیر پېښ کړي.

دریم چې دښار یو متمول تاجر وو دبس په چوکۍ کې نیغ شو او وې ویل:

برېښنا ته خو مو پام شته څنګه پر قیږي.

دبس یوبل سپور په حیرانتیا سره وویل: تالنده بیا څنګه غوریږي

توبه توبه یوبل سپور په ږیره کې ګوتې ووهلې او دبس نور مسافران یې دوسي او سیلاب غورهار ته متوجه کړل.

په بس کې سپور مولانا صاحب چې سپینه ږیره یې لږ څه وړاندې په اصیله شامپو پریمنځلې وه مسافرانو ته په واعظانه لهجه وویل:

داوسه نه ده داسیلاب نه دې دادخدای پاک عذاب دی.

دمولوی خطاب دیوه مسافر خورا خوښ شو.

ملاته په محترمان لهجه مخاطب شو.

ملاصاحب: ستاسي غوندې ملایکو سوال خو دخدای په دربار کې ژر قبلیږي ته دوعا وکړه چې خدای پاک داسیلاب تم کړي.

دملاصاحب سرله فخرسره لوړ شو خپلي قواری ته یې یوڅه نور معظمانه رنګ ورکړ تسپې یې له جیب څخه راوکښې پټ یې ورو ورو له ځان سره څه ویل او بیا یې دمسافرو خواته ور چوف کول.

دبس نورو مسافرو په یوه چیغه وویل: طوفان خو وار په وار پسې زیاتیږي الله دې خیر کړي.

مولوی صاحب دبس سوارلیان دصبر خواته دعوت کړل.

« پر خدای باندی تکیه وکړی الله به خیر کړی » له لږ څه خاموشی او چوپتیا وروسته مولا نا صاحب یوځل بیا خوله پر خبرو پرانیسته.

« داسې معلومیږی چې دا ناڅاپی عذاب په موږ کې دچا په مرگ پسی راغلی دی په موږ کې ضرور یو داسی څوک شته چې په گناهونو سرترپایه لړل شوی دي خوداهم واورئ چې ښیگړه عذاب تم کوی زه تاسی ته دا وایم چې که چانیک او ښیگړی کارونه کړی وي همدا اوس یی په تفصیل سره بیان کړی ممکن خدای پاک د دغو ښیگړو په بدله کې پر موږ نازل شوی عذاب تم کړي ».

تاسی سم وایاست اول مولانا صاحب ته په خپله دخپل ژوندانه نیک کارونه راته بیان کړه مولانا صاحب تسپې په موټی کې راونغاړلی اوږی یی په وړین پټو کې سره وښورولې او ویی ویل: یاره زه به خپله کومه نیکی درته بیان کړم یوه نه ده دوی نه دی دری نه دی بس زما ژوند خوله نیکو کارونو څخه عبارت دي.

زه دجومات ملایم په ژوند مې لمونځ نه دی قضا کړی روژه می نه ده خوړلی بی اودسه نه گرزم په جمعه کې قرآن شریف ختموم تر اوسه می واده هم نه دی کړی بس زه یم عبادت دی او ریاضت.

خدای پاک دی داعذاب زما دعبادتونو په روی ختم کړی.

ملاصاحب له ځان سره دبس پر غبرگه چوکی کې ناست حاجی صاحب ته وویل حاجی صاحب نوبت ستادی. حاجی صاحب چې دښاریو ښه غوښن تاجر وو. خپله نیکی داسی بیان کړه.

مولاناصاحب: که څه هم زما ږیره ستا تر ږیره لږ وړه ده خو پـه دي پوه شه چې پنڅه حجه مې کړی دی. حاجی صاحب چې دا وویل سر یی له فخر سره نور هم لوړ کړ مولاناصاحب سمدلاسه شاباس ورکړ.

«ماشاء الله جزاک الله، خدای پاک دی دا عذاب ستاد حجونو په روی تم کړی» مولانا صاحب له دریم مساپر څخه پوښتنه وکړه ته خپله ښیگړه اونیکی بیان کړه دریم مساپر خپله نیکی داسی بیان کړه.

مولانا صاحب. زه هره پنجشنبه خیرات کوم په زیارتونو گرزم دپیر مبارک مرید یم» ملاصاحب خیراتی او مرید مساپر ته شاباس ورکړ.

اوڅلورم مساپر ته یی مخ ور واړاوه وار ستادی؟

څلورم مساپر وویل< مولانا صاحب زه ډیری مځکې لرم ډیری روپی لرم خیراتونه ورکوم زکاتونه ورکوم ملایانو تـه حلواوی ورکوم سپینې لنگوټې ورکوم دعلماوو خادم یم دمولانا صاحب په مخ کې پراته کوتان سره وغځیدل سمدلاسه یی وویل:

واه واه. ماشاء الله جزاک الله. داطوفان به خدای ستا غـوندی سخیانو دسخاوت په روی تم کړې.

دبس دپای په چوکې کې ناست یوه شیخ بی نوبته ناره کړه:

مولانا صاحب زه پخوا ددنیاتو معلم وم قرآن شریف می حفظ کړی دی اودعلماوو خادم یم.

مولانا صاحب ددنیاتو دمعلم په خبره نور هم خوشحاله شو.

«یاره دچا په سینه کې چې قـرآن وی په هغه دا عذاب هیڅ نشی

کولای » مولانا له يوغريب مساپر څخه پوښتنه وکړه نوبت ستادی. وايه؟

-مساپر ځان سره راټول کړ لاس يې پر سينه کېښود او مولانا ته مخاطب شو. صدقه دې شم ملا صاحب موږ ستاسی د پښو خاوری يو که تاسی نه واست نو موږ ته به دين چا راښودلو قربان دې شم زه يو بزګر يم حرام نه خورم څلور کوچنيان مې خپل دی څلور يتيمان ساتم.

ملاصاحب بزګر ته هم شاباس ورکړ دبس کلينر ته يې ووېيل نوبت ستاذی.

-کلينر ووېيل:

زه دبس کلينر يم کله چې يو غريب مساپر را وخيږی کرايه نه ځينې اخلم خوله خپلې تنخواه څخه دبس مالک ته دغريب کرايه ورکوم.

مولانا صاحب دبس کلينر ته ووېيل شاباش بچو له علماءو څخه هم کرايه مه اخله دا به ډير ښه کار وی.

مولانا دبس چلونکی ته مخ وراړاوه استاذه اوس نوته.

دبس چلوونکی دموټر له اشترنګ څخه لاسونه راپورته کړل او مولانا ته مخاطب شو:

مولا ناصاحب زما څو تنه ملګری شراب هم خوری او زنا هم کوی هغوی ماهم کله کله کارونو ته وربولی خو ما تر اوسه يو غوړپ ترخې اوبه نه دی څښلی او نه پر دوښځو ته ورغلی يم.

« ته ډير ښه کوی خدای پاک به تا دهمدغو نيکو خصلتونو په روی

له عیاب څه وساتی ».

مولانا صاحب دځېږ خواته وکتل:

تقریباً دبس ټولو نارینه مسافرو خپلې نیکیانی او ښیګړې بیان کړې وې خودبس په آخری چوکیو کې دوې ښځې په چادریو کې ناستې وې. ددې مطلب داوو چې دبس ټول نارینه مسافران نیک اوښه خلک وو ګناه په ښځو کې وه.

مولانا پر ډیره لاس راتیر کړ اوپه لوړ آواز یې وویل اوس دې نو دا ښځینه مسافرانې خپلې نیکیانې بیان کړي.

له یوې لنډې چوپتیا وروسته یوې ښځې وویل:

تاسې نارینه ټول بې ګناه یاست شاید ګناه ګاره زه یم.

-ملاصاحب په عاطفانه لهجه وویل نه نه. لورجانی ته خپله یوه نیکی راته بیان کړه ښځې وویل: مولانا صاحب ماله خپل مېړه څخه طلاق اخیستی ده بس همدا زما دژوند نیکه کارنامه ده.

دبس مسافران ټول لکه مار چې وچیچل یوبل ته په توبه توبه لګیاشول. داخو نیکی نه ده طلاق خو عذاب دې ټولو مسافرو په یوه خوله داخبره تکرار کړه. خو ښځې ورته وویل: مګر تاسې خبر یاست چې زما مېړه بې غیرته وو زه یې دنورو دبسترو په زینت بدلولم زه یې وهلم اوپرما یې لوټونه ټولول.

دمولانا صاحب موډ یوځل بیا سم شو. واه واه تاښه کار کړی دی ددوزخ له اوره دې ځان خلاص کړی دی ملاصاحب ددې ښځې په هکله هم

دبې ګناهې فتوی صادره کړه دبس یوه تن مساپر وویل: چې مونږ ټول بې ګناه یو نو دا عذاب داسیلاب دادچا دګناهونو په مخه راغلی دی؟

دبس آخری سورلی چې ښځه وه له چوکۍ څخه پورته شوه او ویې ویل: تاسې ټول بې ګناه یاست تاسې ټول نیک یاست ګناه زما ده ګناه ګاره خو زه یم. دا عذاب دا سیلاب او داقهر زما دګناهونو په مخه راغلی دی.

که چیری دا عذاب زما دګناهونو بار سپکوی اوله ماڅخه دژوند عذاب اخلی نو زه حاضره یم چې داسیلاب دخپل مرګ په قیمت باندی تم کړم.

دبس مساپران دمولانا صاحب په ملګرتیا یوه خوله شول او له ښځې څخه یې وپوښتل څوک یې ته؟

زه ماته وایاست؟

هو تاته وایو.

زه یوه ګناګاره یم داسې ګنا ګاره چې دژوند په ځولۍ کې مې له ګناهونو پرته بل شی نشته زما په ژوند کې مادنیکی ښیګړی او ثواب په نوم څه نه دی کړی.

مولاناصاحب په سنجیده لهجه وویل:

ته خو یوه لعنتی یې.

ښځې خپل اواز له ژړا سره ملګری کړ اوویې ویل:

هو زه لعنتی یم دبس دروازه خلاصه کړی ګوندی دتوپان توندی څپې

له ماڅخه زما دلعنتي ژوند عذاب واخلي ماژر دبي ګناهانو له دي جم ځخه وباسي زه له ګناهونو پیدا شوي یم زه یوه ډمه یم زه په یوه داسې ځای کې زیږیدلی یم چې هلته نه مورشته او نه پلار نه خورشته او نه ورور او نه دانسانی قرابتونو سپیځلتوب.

زه انسانی قرابت نه پېژنم حتی تر اوسه پورې ځان هم نه پیژنم زه دګناهونو په دلدل کې محاصره شوی یم - شریف خلک به را تلل پر ما به یی دخپل هوس آسونه راځغلول او مادخپل ځان اختیار هم نه درلوده.

شریفانو به دخپل شهرت داشباع په بدل کې زما مخې ته دلوټونو بستې ایښودې خو ماله دی لوټونو هم کرکه درلوده ما غوښتل چې دګناه له بازاره ووزم. که ماد ګناهونو داچاپیریال قبول کړی وای نو زما لپاره سره زر هم دخاورو غوندې زیات وو خوما دی چاپیریال ته دکرکی په سترګه کتلو.

ماکوشش وکړ چې دګناه له ژوند ځخه تیښته وکړم خو خدای پاک ته زما پاکه لمن لکه چې منظوره نه وه ژه یی په توپان کې را ایسارد کړم تاسو فکر مه کوئ په تاسی هیڅ هم نه کیږی دا عذاب پرما رانازل شوی دي زه له بس ځخه کوزیږم ګوندی وی چې توفان زما دګناګار ژوندې تومار سره راونغاړي.

ډمه له چوکۍ راولاړه شوه دبس دروازه یی خلاصه کړه اوله بس ځخه کوزه شوه مولانا صاحب دمساپرو خواته مخ ورواړاوه او ویی ویل: مانه ویل مانه ویل چې دکوم ګناه ګار په وجه دا عذاب نازل شوی دی اوس خو

مو ولیدل د بس مساپران ټول په یوه خوله شول او ویې ویل بیشکه ملاصاحب. بیشکه مولانا صاحب: منو دی. قربان دی شم مونږ دی منو.

د بس چلونکی بس روان کړ ټوپیان هم ورو ورو په تم کیدو شو څو دقیقې وروسته بس په سرو لمبو کې سره راونغاړل شو.

د بس د ټولو مساپرو هډوکی ایری شول هیڅوک سلامت و نه وتل دخدای پاک عذاب خپل ښکار کړی وو له بس څخه کوزې شوی ښځې ورو ورو د سړک په توره کږنه باندن د خپل نامعلوم سرنوشت د منزل په لور گامونه پورته کول.

هرات

دغوایی شپاړسم. ۱۳۷٤



## قانع دليکوالو په نظر کې:

دعصمت قانع شعر تر نثر ښه دی او نثر يې بيا تر شعر دشاعر وير په نوم اثر يې دادب لطيف ډېره غوره فن پاره او دبين الاقوامي ادب شهکار دی.

همېش خليل پېښور

عصمت قانع دښي اړخ او کيڼ اړخ په افغانانو کې يو شان محبوب دي دده ليکنې په ټولو افغانانو کې ښه لوستونکي لري. جعفر اڅکزی. کوټه

عصمت قانع دافغانستان دمقاومت دادبياتو تر ټولو باغي انقلابي او عاصي نوم دي. دده شعرونه دمقاومت دادب ډېره غوره پانګه ده.

شهرت ننګيال-کابل

عصمت قانع دتراژيديو زېږنده ده زموږ په جهادي ادبياتو کې دی په خپله دخپل ځان مثال وو. قانع په خپله يوه تراژيدي ده او هنري هم دتراژيديو انځورګر دی. نسيم ستانکزی پېښور.

دقانع صاحب ژوند او فن چې زه پرتله کوم نو حيرانيږم چې په داسې لالهانده او سرګردانه ژوند کې يې داسې ادبي شهکارونه څرنګه تخليق کړي دي ټول ادبي آثار يې دلوړ ذوق او ځپانده استعداد ډېره ښه څرګندويي کوي.

سيد محی الدين هاشمي

عصمت قانع دافغانستان دضمير بغاوت دی.

عطاشاد

عصمت قانع په يوه وخت کې په څو جبهو کې جنګېدلی دی هغه هم دروسانو پر خلاف او هم ددرباري تنظيمونو پرضد. قانع دخپلو خلکو په مينه کې هم افراطي دي او دخپلو خلکو ددښمنانو په کرکه کې هم. توريالی ځاځی- پکتيا.

عصمت قانع استعداد خوب است. [illegible] است.

برهان الدين رباني

مسئول مدير مجله شرعيات



## پېژندنه

عصمت قانع دمرحوم اختر محمد سليمان خيل زوی په ۱۳٤۰ هجري لمريز کال کې دزابل ولايت دشاه جوی په کلاخيلو کې زېږېدلی دي.

منځنۍ او لومړنۍ زده کړې يې دهوتک بابا په ليسه کې سرته رسولي دي. قانع دافغانستان دمقاومت دادب له وتليو څېرو څخه دي.

لاندې آثار يې چاپ شوي دي:

۱) دوينو سوغات — شعري مجموعه

۲) دپلوشو ډالۍ — رر

۳) جرس — رر

٤) ساندې په نغمو کې — رر

٥) سبا به بيا کډې بارېږي — لنډ داستانونه

٦) خيره راواستوی خيربوسی — رر

۷) ناوي پل اخله جګړه — ناول ترچاپ لاندې